

# ملي سرود

دا وطن افغانستـان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولـو کور دی
د پښتـون او هـزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیـواد به تل ځلیږي
په سینـه کې د آسیـا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عـزت د هـر افغان دی
هر بچی یې قهرمـان دی
د بـلـوڅـو د ازبکـو
د تـرکمنـو د تـاجکـو
پـامیریـان، نـورستـانیـان
هـم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکـه زړه وي جـاویـدان
وایـو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم




# پښتو

## لسم ټولګی

## (د دري ژبو لپاره)

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ. ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې


**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو ژبې او ادبیاتو څانګې د درسي کتابونو مؤلفین

**اېډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اېډیټ ډیپارټمنټ غړي

**ټولګی:** لسم (د دري ژبو لپاره)

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# لیک لړ


| شمېرې | د لوست نوم | مخونه |
| --- | --- | --- |
| لومړی لوست | دعا | ۱ |
| دويم لوست | نعت | ۵ |
| دريم لوست | عبدالرحمٰن بابا | ۹ |
| څلورم لوست | بد نيتي (ولسي کيسه) | ۱۵ |
| پنځم لوست | پښتو نحوه | ۱۹ |
| شپږم لوست | ورزش (خبري اترې) | ۲۷ |
| اووم لوست | نصيحت | ۳۳ |
| اتم لوست | زرغونه کاکړه (رح) | ۳۷ |
| نهم لوست | ملي يووالی | ۴۱ |
| لسم لوست | د پښتو نثر لنډه تاريخچه | ۴۵ |
| يوولسم لوست | د بديع علم ـ لومړۍ برخه: لفظي صنعتونه | ۵۱ |

| شمیره | د لوست نوم | مخونه |
|---|---|---|
| دولسم لوست | د بديع علم ـ دويمه برخه: معنوي صنعتونه | ٥٧ |
| ديارلسم لوست | خيرالبيان | ٦٥ |
| خوارلسم لوست | عبدالرحمٰن پژواک | ٧١ |
| پنځلسم لوست | مېرمن حميده | ٧٧ |
| شپاړسم لوست | امير حمزه شينوارى | ٨٣ |
| اووه لسم لوست | د پښتو ادبياتو لرغونې دوره | ٨٩ |
| اتلسم لوست | د لويو جرگو تاريخچه | ٩٩ |
| نولسم لوست | په پښتو ادب کې لنډه کيسه | ١٠٥ |
| شلم لوست | ادبي ليكونه | ١١١ |
| يوويشتم لوست | سيند (نوى ادبي هنري نثر) | ١١٧ |
| دوه ويشتم لوست | محاوره (د انگليسي ژبې د زده کړې د .... ) | ١٢٣ |
| درويشتم لوست | فكر او عمل | ١٢٩ |
| خلور ويشتم لوست | د پاچا خان تعليمي لاربوونې | ١٣٣ |
| پنځه ويشتم لوست | متلونه | ١٣٩ |
| شپږويشتم لوست | محاوره ( د هېواد د لرغوني او تاريخي ... ) | ١٤٥ |
| اووه ويشتم لوست | محاوره (په هېواد کې د عصري او رسمي .... ) | ١٥١ |
| اته ويشتم لوست | پښتني دودونه | ١٥٩ |
|  | وييپانگه | ١٦٥ |
|  | اخځليكونه | ١٧١ |



# دعــا

ـ حمد څه ته وايي، څوك يې په اړه خبرې کولای شي؟
ـ تاسې د تېرو ټولگيو د پښتو لوست په کتابونو کې د حمد په نامه څه لوستي دي؟
ـ د کومو شاعرانو حمدونه مولوستي دي؟

د حمد لغوي معنا ثنا صفت اوستاينه ده، په ادبي اصطلاح هغه منظومه وينا يا شعر دی چې د الله ﷻ ستاينه او صفت پکې راغلی وي.

د پښتو ژبې د پخوانيو او اوسنيو شاعرانو د شعرونو په ديوانونو يا چاپ شوو ټولگو کې داسې شعرونه وينو چې هغه د الله ﷻ صفت او ستاينې ته ځانگړې شوي وي. په دغو شعرونو کې شاعران له خپل استعداد او پوهې سره سم د شعر په خوږه ژبه او په زړه پورې ډول د خدای ﷻ عظمت او صفتونه بيانوي. موږ د دې ټولگي د پښتو لوست کتاب د کاظم خان شيدا په يوه حمديه شعر پيلوو.

ای د کل جهان صنیعه
کامله قدرت د تا دی
لوی دېوان دې مرتب کړ
هر ورق دې گوناگون دی
هره ورځ ورق گردان یې
تا له خاورو آدم ساز کړ
چې په ملک کې دې وجود دی
مار هم خپله روزي مومي
دیده واخلي له عقربه

ای د هر آسمان بدیعه
نادره صفت د تا دی
چې انسان دې منتخب کړ
هر مضمون دې بوقلمون دی
مخترع د نوي شان یې
تا همراز او تا دم ساز کړ
بهره مند د تا په جود دی
گاه خوړل کا، گاهې شومي
لقمه ورکړې زما ربه !

ستا کرم پاکه سبحانه
مگس نه شړي له خوانه

(کاظم خان شیدا)

کاظم خان شیدا د افضل خان ختېک زوی، د اشرف خان هجري لمسی او د خوشحال خان ختېک کړوسی دی. د زوکړې کال یې(۱۱۳۵) هجري قمري اټکل شوی او تر (۱۱۹٤هـ.ق.) کال پورې یې ژوند یقیني دی. د پښتو پیاوړی نازکخیاله شاعر دی، د شعرونو دیوان یې په افغانستان او پښتونخوا کې څو ځله چاپ شوی دی.

د متن لنډیز

ای خدایه! د ټول جهان جوړوونکیه او د هر آسمان پیدا کوونکیه، ته بشپړ قدرت لرې او ټولې ستاینې او نمانځنې تا لره دي. تا د کایناتو لوی دیوان مرتب کړ او انسان دې د ځمکې پرمخ د خپل خلیفه په توگه وټاکه. ته د ډول ډول مخلوقاتو خالق یې. آدم دې له خاورو جوړ کړ او ټولو مخلوقاتو ته روزي رسوونکی یې. پر مخلوقاتو ستا کرم او احسانونه ډېر او له شمېره تېر دي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي. وروسته دې زده کوونکي په نوبت سره د دې حمدیه شعر یو یو بیت په ټولګي کې ولولي. ښوونکی دې د اړتیا پر مهال د هغوی غلطۍ سمې کړي.

۲ـ زده کوونکي دې پر دریو ډلو ووېشل شي: یوه ډله دې د متن عربي کلمې، بله دې دري کلمې او درېمه ډله دې پښتو کلمې په نښه کړي. د هرې ډلې استازی دې خپلې په نښه کړې کلمې پر تختې ولیکي.

۳ـ ښوونکی دې پر تختې لیکل شوې کلمې د زده کوونکو په وسیله معنا او هغه چې زده کوونکي یې معنا کولای نشي په خپله دې معنا کړي او زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

٤ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د لوستل شوي متن مفهوم په ساده جملو کې د ټولګیوالو په وړاندې ووایي.

٥ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په مناسبو جملو کې وکاروي:
صنیع، بدیع، نادر، بوقلمون، عقرب، شومي، خوان.

٦ـ درې درې تنه زده کوونکي دې په نوبت سره پورته شي، یو دې لومړی د حمد یو بیت د کتاب له مخې ولولي، دویم دې هغه د املاء په ډول پر تختې ولیکي، درېم زده کوونکی دې هغه معنا کړي، دا لړۍ دې تر پایه په ټولو زده کوونکو پلې کړای شي، ښوونکی دې د اړتیا پر مهال مرسته وکړي.

۷_ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- د نړۍ جوړوونکی او د مخلوقاتو پیدا کوونکی څوک دی؟
- څوک د لوی خدای ﷻ ځینې قدرتونه بیانولای شي؟
- څوک د کاظم خان شیدا په ا ړه معلومات ورکولای شي؟
- څوک د حمد او نعت توپیر کولای شي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د دې حمد مفهوم په خپلو الفاظو کې ولیکي او په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې، هغه د نورو ټولگیوالو په وړاندې ولولي.

په قیامت به وي د عرش تر سیوري لاندې
بادشاهان چې عادلان شي عدل کاندې
په هر قوم چې کرم د کردگار شي
سرداران به یې دینداره نیکو کار شي
نښانه د خدای د قهر بد حاکم دی
چې هیڅ عدل انصاف نه لري ظالم دی
((عبدالقادر خټک))



# نعت

ــ څوك د نعت په لغوي او اصطلاحي معنا پوهېږي؟

ــ په نعت کې کوم موضوعات راځي؟

ــ په نعتونو کې کوم ډول مطالب بیا نېږي؟

نعت په لغت کې غوره او نېکې ستاینې ته وايي او په اصطلاح کې هغه منظومه یا منثوره وینا ده چې د اسلام د ستر پیغمبر حضرت محمد ﷺ ستاینه او صفت پکې شوی وي.

زموږ د دې ټولګي د پښتو دویم لوست د خوشحال خان خټک نعتیه کلام ته ځانګړی شوی دی.

تـر لـک زیـات پیغمبـران دي | څوک نبیان څوک مرسـلان دي
همـه واړه نېـک کـردار دي | امینـان دي وفـادار دي
عالمـان دي، راسـتگویان دي | د وګـړو نېکخواهـان دي
نـه یـې نفس نـه یـې هـوا وه | هـره چـاره یـې رښـتیا وه
یـا بـه وحـي یـا الهام و | چـې یـې چـا و تـه کلام و
زیـات او کـم ویـل یـې نـه کـړه | چـې یـې کـړه واړه یـې ښـه کـړه
محمـد پکـې افضـل دی | هـم أخـر دی هـم اول دی
د دیـن کار پـه ده تمـام شـو | خاتمـت د ده پـه نـام شـو

(خوشحال خان ختېک)

خوشحال خان ختېک:

خوشحال خان ختېک د شهباز خان ختېک زوی، د پښتو ژبې پیاوړی شاعر، لیکوال، ملي مشر او لارښود و. په (۱۰۲۲) هجري قمري کال د پښتونخوا په سرای اکوړه کې زېږېدلی و. په (۱۱۰۰) هجري قمري کال یې د (۷۸) کلونو په عمر له دې نړۍ سترګې پټې کړې دي.

خوشحال خان په نظم او نثر کې زیات شمېر آثار لیکلي دي چې د بېلګې په توګه یې د اشعارو کلیات، دستارنامه، طب نامه، فراقنامه، فضل نامه او نورو نومونه اخیستلی شو.

د متن لنډیز

تر یو لک او څلورویشت زره زیات او کم پیغمبران او د خدای استازي وو. په دوی کې چا د نبیانو او چا د مرسلانو مرتبه درلوده. دوی ښتیني او د غوره اخلاقو بېلګې وې. خلکو ته یې د خدای ﷻ د وحې په رڼا کې هدایت او لارښوونه کوله. په دغو ټولو کې محمد ﷺ ډېر غوره او د لوړې مرتبې خاوند دی، که څه هم ظاهراً دې نړۍ ته له نورو ټولو پیغمبرانو وروسته راغلی دی، خو په معنا کې له ټولو لومړی او مقدم دی او نبوت په ده باندې ختم شوی دی.



## فعالیتونه

۱ـ د ښوونکي له خوا د متن تر لوستلو او لازمو څرګندونو وروسته دې زده کوونکي متن په چوپه خوله په ډېر دقت سره ولولي، بیا دې له څو زده کوونکو څخه وغوښتل شي چې په وار سره متن په لوړ غږ د نورو ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

۲ـ ښوونکی دې د متن ستونزمن لغتونه له معنا سره پرتختې ولیکي. بیا دې زده کوونکي په نوبت سره ور وبولي چې هغه په مناسبو جملو کې وکاروي. ښوونکی دې د اړتیا په وخت کې ورسره مرسته وکړي. زده کوونکي دې پر تختې لیکل شوې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

۳ـ زده کوونکي دې دوه دوه تنه د تختې مخې ته ور وبلل شي. یو تن دې د شعر یو بیت ولولي او بل دې هغه معنا کړي. دا لړۍ دې په ټول ټولګي کې پلې کړای شي.

٤ـ زده کوونکي دې د ټولګیوالو په وړاندې د شعر مفهوم په خپله ژبه بیان کړي.

٥ـ ښوونکی دې دا لاندې بیتونه پر تختې ولیکي، زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې هغه په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا یې تشریح کړي:

ترلک زیات پیغمبران دي
څوک نبیان څوک مرسلان دي
همه واړه نیک کردار دي
امینان دي وفادار دي
محمد په کې افضل دی
هم آخر دی هم اول دی

۶ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- پیغمبر چاته ویل کیږي؟
- نبي څوک دی؟
- وحي څه ته وایي؟
- پیغمبرانو به څنګه ټولې چارې د وحې په رڼا کې تر سره کولې؟
- حضرت محمدﷺ ولې تر نورو پیغمبرانو غوره دی؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د حضرت محمدﷺ د غوره اخلاقو په اړه څو کرښې ولیکي او په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ولولي.

تر شیرین اسم دې جار شم محمده ﷺ
سرفراز دې په دیدار شم محمده ﷺ
سعادت د دواړو کونو زما دا دی
که دې خاورې د دربار شم محمده ﷺ
ستا ثنا به د لویي ویلای نه شم
که بلبله د سهار شم محمده ﷺ
((رحیمداد))

# عبدالرحمٰن بابا(رح)



ـ تاسې د پښتو په پخوانیو شاعرانو کې څوک پېژنئ!

ـ د مخه مو د عبدالرحمٰن بابا شعرونه لوستي، د هغه په هکله معلومات لرئ!

د پښتو ادب تاریخ په دویمې یا منځنۍ دوره کې ډېر پیاوړي شاعران تېر شوي چې د ادبي آثارو په رامنځته کولو یې د پښتو ادبي پانګې ته ډېره بډاینه وربخښلې ده. د دغې دورې په نومیالیو شاعرانو کې یو هم عبدالرحمٰن بابا دی چې د خپل خواږه او عالي شعر له برکته یې لوړ نوم او شهرت په برخه شوی او په ولس کی یې دومره مقبولیت تر لاسه کړی چې د ((بابا)) په لقب منلی او نمانځل شوی دی. په دې لوست کې نوموړی درپېژنو:

د پښتو خوږ ژبی شاعر او نومیالی عارف عبدالرحمٰن بابا(رح) په (۱۰۴۲) هجري قمري کې کال کې د پښتونخوا د پېښور ښار د بهادر په کلي کې نړۍ ته سترگې پرانیستې وې. پلار یې عبدالستار نومېده او د مومندو پښتني قبیلې ته منسوب و.

عبدالرحمٰن بابا لومړني دیني علوم په خپل کلي او شاوخوا سیمو کې لوستي وو. په ځوانۍ کې د لوړو دیني علومو په زده کړې پسې کوهاټ ته ولاړ. هلته یې د مروجو دیني او ادبي علومو د زده کړې تر څنگ د هغې سیمې له مشهور عارف او روحاني شخصیت حاجي بهادر کوهاټي(رح) څخه په طریقت کې لاسنیوی کړی و. کله چې عبدالرحمٰن بابا د دیني علومو د زده کړې له بشپړولو وروسته خپل ټاټوبي پېښور ته راغی، نو د خپل پلرني کلي پرځای یې په هزارخانې کې استوگنه غوره کړه. د ژوند تر پایه په همدې کلي کې اوسېدلی دی.

وایي چې عبدالرحمٰن بابا له کوچنیوالي څخه د لوړ ادبي ذوق او پیاوړي استعداد خاوند و. د څوارلس پنځلسو کلونو په عمر یې په شعر ویلو پیل کړی او بیا په دې لړ کې د استادۍ پوړ او مقام ته رسېدلی دی. د ځانگړي ادبي مکتب خاوند دی. د خپل وخت او را وروسته زمانې ډېرو شاعرانو یې د ادبي لارې پېروي کړې ده.

د عبدالرحمٰن بابا په شعرونو کې د بېلا بېلو دیني، اخلاقي او نورو ټولنیزو مسایلو ترڅنگ د پښتو ژبې د پخوانیو شاعرانو، لکه: میرزا خان انصاري، دولت لواڼي، خوشحال خان خټك او د دري ژبو شاعرانو سنایي غزنوي، حافظ شېرازي او نورو نومونه یاد کړي او د هغوی ادبي پوړ او مقام یې ښودلی دی. له دې څخه څرگندېږي چې بابا د پښتو او دري ادبیاتو ښه ژوره مطالعه درلوده.

عبدالرحمٰن بابا د خپل پاخه او خواږه شعرله برکته دومره شهرت او مقبولیت ترلاسه کړی چې هغه تراوسه د بل پښتون شاعر په برخه شوی نه دی. په افغان اولس کې د هغه د عزت، عقیدت او درناوي اندازه له دې هم معلومېږي چې د ((بابا)) په درانه لقب یې منلی او نمانځلی دی.

د شعر او وینا محبوبیت یې تر دې اندازې دی چې د لویو،وړو، ښځو او نرو په خولو او

ژبوگرځي. شعرونه یې خلك په ورځنیو خبرو اتروکې د متلونو په بڼه کاروي او د یوه پاخه باوري سند په توګه ورځخه کار اخلي. د عبدالرحمٰن بابا شعر د زمانې او وخت له غوښتنو او د خلکو له مزاج سره برابر دی. د وعظ، نصیحت، سلوك او معرفت ډېرې ژورې معنا ګانې یې په شعرونوکې شته.

د عبدالرحمٰن بابا له شعرونو ځخه دا ځرګندېږي چې دی له الله ﷻ او د هغه له مخلوق سره مینه لري. بابا موږ ته د پند، عبرت، ننګ، غیرت، لوړ همت، قناعت، سخاوت، زیار، زحمت او ریاضت خبرې هم کوي او د یوه حکیم فلسفي او متفکر انسان په ځېر له هر ډول تعصب، ځان غوښتنې، تنګ نظرۍ، کرکې او کینې ځخه د ځان ژغورنې لارې هم راښیي. بابا که له یوې خوا موږ ته د اخلاقي او روحاني رنځونو درمل را په ګوته کوي، نو له بلې خوا د یوه اجتماعي مصلح او خیر غوښتونکي په شان د دنیوي او اخروي نېکمرغیو لارې چارې هم راښیي.

د عبدالرحمٰن بابا په شعرکې دومره خوږوالی او کشش شته چې هر لوستی او نالوستی (باسواده او بې سواده) وګړی لوستلو او اورېدلو ته راکاږي. د هغه د وینا ساده ګي او رواني، موږ اړ باسي چې د پند او خوند خبرې یې د زړه په مینه واورو.

د بابا په شعرکې هر چاته خپل دردونه او د ژوند رښتیني انځورونه ښکاري. همدغه یې د شعر عظمت، کرامت او اعجاز ګڼلی شو. هغه دا حق لري چې په زغرده ووایي:

چې منکر پرې اعتراض کولی نشي
دا دې شعر دی رحمانه که اعجاز؟

عبدالرحمٰن بابا د شعرونو لوی دېوان لري. دغه دېوان ځو ځو ځله په افغانستان او پښتونخوا کې چاپ او خپور شوی چې د خلکو په زړونو کې یې ځای نیولی دی او په کورونوکې یې ساتي.

د وروستیو ادبي ځېړنو له مخې عبدالرحمٰن بابا په (۱۱۲۸) هجري قمري کال کې

وفات شوی او د پېښور د هزارخانې په لویه هدیره کې ښخ دی. ډېر ارادتمندان یې زیارت ته ورځي او هر کال د پسرلي په لومړیو ورځو کې یې پر مزار ستره ادبي غونډه جوړېږي.

د شعر بېلګه:

دنیادار که مستغني په سیم او زر دی
هنر مندو ځخه ګنج د خپل هنر دی

بېهوده به زورور وځان ته وایي
د دنیا سړی که هر څو زورور دی

هسې مه وایه چې زه یم په جهان کې
پیدا کړی خدای د سر د پاسه سر دی

ځینې ځینې یې ولیان پیغمبران کړل
نه چې هر سړی ولي او پیغمبر دی

جو دانې قدر یو لعل پکې پیدا شي
نور جهان واړه د تورو کاڼو غر دی

پیدا کړي خدای سړي په تفاوت دي
هسې نه چې جهان واړه برابر دی

که د عمر و رفتن ته څوك نظر کا
دا به وایي چې آفتاب د نمازدیګر دی

چې یې سر په ځمکه ایښی وي و یار ته
په آسمان باندې ختلی لکه لمر دی

تعجب زما د ډېرو اوښکو مه کړه
ما موندلی په دا بحر کې ګوهر دی

د ریا خرقه یې خدای مه کړه په غاړه
((رحمان)) کوږ دستار تړلی قلندر دی

د متن لنډيز:

عبدالرحمٰن بابا د پښتو ژبې نومیالی خوږ ژبی شاعر دی چې په (۱۰٤۲) هجري قمري کال د پښتونخوا د پېښور په بهادر کلي کې زېږېدلی او په (۱۱۲۸) هجري قمري کال کې مړ دی. عبدالرحمٰن بابا د خپل ښکلي، خواږه او پاخه شعر له برکته له لوړ نوم او شهرت نه برخمن دی. د خلکو په زړونو کې یې ځای نیولی او د همدغه درنښت له امله یې د ((بابا)) په درانه لقب منلی او نمانځلی دی. وینا یې د خلکو په زړونو خولو او ژبو کې ده او خلك یې په ورځنیو خبرو اترو کې د متلونو او پاخه باوري سند په توګه کاروي. عبدالرحمٰن بابا د شعرونو لوی دیوان لري چې په افغانستان او پښتونخوا کې څو څو ځله چاپ شوی دی.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي، ستونزمنې کلمې دې په نښه او ښوونکی دې د هغو په حل کې له زده کوونکو سره مرسته وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د متن یوه یوه برخه ولولي.
۳ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د متن مفهوم په خپله ژبه ووايي.

٤ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي: یوې ډلې ته دې دنده وسپارل شي چې په متن کې صفتونه په نښه کړي او بله ډله دې د عبدالرحمٰن بابا د شعر مفهوم په ساده عباراتو ولیکي، د یوې ډلې استازی دې په نښه کړي صفتونه د تختې پرمخ ولیکي او د بلې ډلې زده کوونکو استازی دې په ساده عبارتونو د متن لیکلی مفهوم ټولګیوالو ته ولولي.

صفت:
صفت ته ستاینوم هم وايي، هغه کلمه ده چې د یوه نوم حالت او څرنګوالی وښيي، لکه:
روغ، ناروغ، ښه، بد، قوي، کمزوری، زړور، بې زړه، تازه، مړاوې، او نور.

۵ـ ښوونکی دې یو یو زده کوونکی تختې ته وروبولي چې په نښه شوي صفتونه په مناسبو جملو کې وکاروي.

۶ـ ښوونکی دې د عبدالرحمٰن بابا دا لاندې دوه بیتونه پر تختې ولیکي، له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې د هغې مفهوم په خپلو کتابچو کې ولیکي:

دنیادار که مستغني په سیم و زر دی
هنرمندو سره ګنج د خپل هنر دی
هسې مه وایه چې زه یم په جهان کې
پیدا کړی خدای د سر له پاسه سر دی

۷ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- عبدالرحمٰن بابا په کوم کال زېږېدلی او په کوم کال کې مړ دی؟
- عبدالرحمٰن بابا خپلې لومړنۍ او لوړې دیني زده کړې په کومو سیمو کې سرته رسولې دي؟
- عبدالرحمٰن بابا ولې خلکو د بابا په درانه لقب نمانځلی او منلی دی؟
- د عبدالرحمٰن بابا قبر چېرته دی؟



## کورنی دنده

زده کوونکي دې په کور کې د پښتو د کوم پخواني شاعر لنډ ژوند لیک ولیکي او په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې هغه ټولګیوالو ته ولولي.

# بدنيتي

## (ولسي کيسه)



ـ بد نيتي څه ډول عمل دی؟

ـ بد نيتي څه پايلې لري؟

د انسان هره کړنه د هغه په نيت پورې اړه لري، يا له نيت څخه سرچينه اخلي. ځينې وګړي داسې وي چې د ښه نيت او سپېڅلې ارادې څښتنان وي، څه چې ځانته غواړي او يا پر ځان يې لوربږي، د نورو په وړاندې هم همدغسې اراده لري. ځينې بيا داسې وي چې ځان غوښتنې يې سترګې ړندې کړې وي. هرڅه د ځان لپاره غواړي او پر نورو يې نه لوربږي. د هر چا په وړاندې ناوړه ارادې او شوم نيتونه لري. دغسې وګړي د خپلې دغې شومې ارادې او بد نيت له امله، له ناوړه برخليك سره مخامخ کېږي. په دې لوست کې د بدو نيتونو د خاوندانو په اړه يوه کيسه لولو چې هغوی څنګه د خپلو ناوړو اعمالو په سزا رسېدلي دي.

درې تنه له خپل کور و کلي راوتلي او په سفر روان وو، د لارې په اوږدو کې سره ملګري شول. ټوله ورځ يې مزل وکړ، مازديګر مهال يوه کلي ته د شپې تېرولو لپاره ورستانه شول. د کلي په جومات کې يې شپه شوه. د شپې مهال چې د کلي خلک خپلو کورونو ته ولاړل، نو دوی په خپل منځ کې مشغولېدل. په خبرو خبرو کې يې يو له بله نه د سفر کولو د علت پوښتنه وکړه. يوه وويل: زما په کور کلي کې ښايسته ښايسته ځوانان دي چې د هغوی ښکلي ښکلي لباسونه او اسبابونه وينم، نو هغه کتلی اوزغملی نه شم، ځکه مې وغوښتل چې سترګې ورڅخه پناه کړم او کور کلی پرېږدم.

دويم وويل: زما هم همدغه حال دی. درېيم وويل: تاسې له ما سره په غم کې شريک يئ. مطلب دا چې زموږ د درې واړو يو حال دی. په خبرو خبرو کې هغه لومړي وويل: ماخو له هيچا سره نېکي ونه کړه او هېڅوک زما له لاسه خوشاله او آرامه نه شول. دويم وويل: ته خو ډېر ښه سړی يې، ستا خو بېخي بد نيتي نشته. بدنيتي خو زما ده چې بل څوک له چا سره ښه وکړي، نو زه پرې تر ډېرو ورځو خپه يم. درېيم وويل: تاسو دواړه خو بېخي بزرګان يئ، زړونه موله کينې نه پاک دي، ځکه چې زما دومره کينه او بدنيتي ده چې وايم، له ما سره دې هم څوک ښه ونه کړي، د نېکۍ او احسان نوم دې له جهانه ورک شي. شپه تېره شوه، سهار درې واړه له کلي روان شول. پر لاره يې د پيسو يوه کڅوړه و موندله. له لارې ګوښه يو ځای کېناستل او ويې ويل: راځئ چې دا پيسې همدلته سره ووېشو او بېرته خپلو کورونو ته وروګرځو. خو هر يوله ډېرې کينې او بدنيتۍ نه په دې نه راضي کېده چې بل ملګری يې برخه واخلي. نه يې هغه پيسې وېشلای شوې او نه يې پرېښودلای شوې.

يوه شپه او ورځ يې وږې تږې او بې خوبه تېره کړه. آخر دې نتيجې ته ورسېدل چې يو تن دې نږدې ښار ته لاړ شي او څه خواړه دې راوړي. هغه ملګری چې ښار ته په خوړو پسې لاړ، له ځان سره يې وېتېيله چې په خوړو کې به زهر واچوم چې دواړه يې وخوري، پرې مړه به شي او دا ټولې پيسې به ده ته پاتې شي. دلته دواړه پاتې ملګرو مصلحت وکړ چې ښارته په خوړو پسې تللی ملګری يې چې کله راشي، نو و به يې وژنو او پيسې به يې موږ دواړو ته

پاتې شي. هغه ملګري يې په خوړو کې زهر ګډ کړل، کله چې خپلو ملګرو ته راغی، دوی دواړو پرې برید وکړ او هغه يې وواژه. بيا يې پرېکړه وکړه چې لومړی بايد خواړه وخوري، بيا به دواړه پيسې سره ووېشي. کله چې يې هغه په زهرو لړلي خواړه وخوړل، هغوی دواړه هم مړه شول او ټولې پيسې ترې پاتې شوې.

د متن لنډيز:
دا د دريو تنو کيسه ده چې د بدو نيتونو او بدو ارادو خاوندان وو. هر يوه هر څه يوازې د خپل ځان له پاره غوښتل او پر نورو يې نه لورېدل. په خپله خو به يې له چا سره نېکي نه کوله، خو د نورو په نېکۍ به هم خپه کېدل. دوی په يوه سفر کې سره ملګري کېږي او کله چې د پيسو کڅوره پيدا کوي، د يوه هم دا نه لورېږي چې بل ملګری دې پکې ونډه ولري. دوی په خپلو منځو کې يو بل ته نيت بد وي. بلاخره دري واړه د خپلو شومو نيتونو قرباني کېږي او د پيسو کڅوره ترې پاتې کېږي. موږ بايد له دې کيسې څخه پند واخلو، همېشه نېکه اراده او ښه نيت ولرو. څه چې د خپل ځان لپاره غواړو، د نورو لپاره يې هم وغواړو. يو بل ته د ښېګڼې رسولو اراده ولرو او تل يو بل ته د مرستې لاس ورکړو. نيت مو بايد پاک او اراده مو بايد نېکه وي.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله په غور او دقت ولولي او د متن ستونزمنې کلمې او مطالب دې په نښه کړي.

۲ـ ښوونکی دې هغه ستونزمنې کلمې په خپله د زده کوونکو په وسيله او که هغوی نه شوای معنا کولای په خپله دې هغه معنا او توضيح کړي.

۳ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د متن يوه يوه برخه د ټولګيوالو په وړاندې ولولي.

٤ـ زده کوونکي دې وګومارل شي چې متن يو ځل بيا له ځان سره په غور او دقت ولولي او په هغو کې فعلونه په نښه او په خپلو کتابچو کې دې وليکي.

فعل: هغې کلمې ته وايي چې په يوه زمانه يا ټاکلي وخت کې د يوه کار يا يوې پېښې په راڅرګندېدو دلالت وکړي.
فعل د زمانې په لحاظ په تېر مهال (ماضي) او سمهال (حال) او راتلونکي مهال (مستقبل) وېشل کېږي. د هرې زمانې فعل په هماغه زمانه کې د يوه کار په سر ته رسولو دلالت کوي.

٥ـ زده کوونکی دې په نوبت سره په خپلو کتابچو کې ليکلي فعلونه په ټولګي کې ولولي. ښوونکی دې له هغو سره په سمون او بشپړتيا کې مرسته وکړي.

٦ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست ارزونه وشي:

- درې واړو ولې له کور او کلي څخه د سفر هوډ کړی و؟
- هغوی هر يوه د خپلو بدو نيتونو په اړه څه وويل؟
- هغوی په لاره کې څه وموندل او بيا يې پرې څه وکړل؟
- په پای کې درې واړه څنګه ووژل شول؟
- د کيسې له پايلې څخه مو څه زده کړل؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه دې ته ورته بله کيسه يا پېښه وليکي او د پښتو په بل درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګيوالو ته ولولي.

# پښتو نحوه



ـ تاسي جمله پېژنئ؟ جمله له څه شي څخه جوړېږي؟
ـ جمله په خبرو اترو کې څه ارزښت او اهمیت لري؟
ـ که د جملو جوړښت سم نه وي، په خبروکې به څه ستونزې را منځته شي؟

ژبه انسان ته یوه الهي پېرزوینه ده چې په ټولنه کې د وګړو ترمنځ د پوهوني او را پوهوني ډېره مهمه وسیله ګڼل کېږي.

ژبه له غږونو څخه جوړه ده. له همدغو غږونو څخه د کلمو بېلا بېل ډولونه (لکه نومونه، صفتونه، ضمیرونه، ادات، فعلونه او نور) جوړېږي. د کلمو د دغو بېلا بېلو ډولونو له یو ځای کېدو څخه جمله جوړېږي چې هغه د ژبې د نحوي نظام اساسي برخه جوړوي. په دې لوست کې جمله او د هغې د جوړښت بېلا بېلې برخې او ډولونه در پېژنو.

نحوه عربي کلمه ده، لغوي معنا يې لاره، روش او طرز دی، په اصطلاح کې د ګرامر هغه برخه ده چې په جملې کې د کلمو د مطابقت، اړيکو، ترتيب او ترکيب په هکله بحث کوي.

يوه بله پېژندنه يې داسې ده:

نحوه هغې پوهې ته ويل کېږي چې د يوې ژبې د جملو، عبارتونو، فقرو او ترکيبونو له جوړښت، ترتيب او تنظيم څخه بحث کوي.

په عمومي ډول د يوې ژبې په ګرامر کې بايد د نحوې برخه د جملې په هکله دې لاندې پوښتنو ته سم او عملي ځوابونه ورکړي:

لومړی: د يوې ژبې تر ټولو کوچنۍ برخه کومه ده، يا په بله وينا، هغه کوچني واحدونه چې جمله جوړوي کوم دي.

دويم: دغه کوچنۍ برخې يا اجزاوې يو له بل سره څنګه يو ځای کېږي، ترڅو جملې جوړې کړي.

دريم: کله چې د يوې جملې مورفيمونه په ګرامري واحدونو ووېشل شي، دغه کوچني واحدونه څه نومېږي؟

## نحوي واحدونه:

په ګرامري معنا او مفهوم د يوې ژبې تر ټولو کوچنی واحد چې د وېشلو وړ نه وي، تګميم يا نحوي واحد ورته وايي. د مثال په ډول، کله چې ووايو: دغه څوک ده؟ که د همدې سواليه جملې په ځواب کې وويل شي: نجلۍ، په ګرامري لحاظ بشپړ مطلب اداء شو. دلته «نجلۍ» يو تګميم يا کوچنی نحوي واحد دی.

## ترکيب:

ترکيب هم د نحوي واحدونو له جملې څخه دی چې د جملو په جوړونه او رغونه کې ډېره ارزښتمنه ونډه لري. ترکيب د دوو يا زياتو خپلواکو او ناخپلواکو کلمو ټولګه ده چې

برخې يې يوه له بلې سره ګرامري اړيکې لري. ترکيبونه لومړی په اسمي او فعلي ډلو وېشل کېږي. د اسمي ترکيبونو اساسي برخه اسم يا نوم وي او د فعلي ترکيبونو اساسي برخه فعل وي. اسمي ترکيبونه ډېر ډولونه لري، لکه: اضافي ترکيبونه، توصيفي ترکيبونه، عددي ترکيبونه، قيدي ترکيبونه، تاکيدي ترکيبونه او اداتي ترکيبونه.

**فقره**:

فقره هم يو نحوي واحد دی. د جملې اساسي ارکان مبتدا او خبر دواړه لري. خو کله کله په نحوي جوړښت کې د معنا له مخې د جملې د بلې برخې جز ګرځي او ورپورې مقيدېږي.

د مثال په ډول: ((پسرلی راغی))، يوه خپلواکه ګرامري بڼه ده، خو که وويل شي: ((پسرلی چې راغی)) په دغه حالت کې په (چې) سره مقيده شوه او بايد بله ګرامري بڼه ورپورې وتړل شي چې معنا يې پوره شي. په دې ډول: ((پسرلی چې راغی، نړۍ ښکلې شوه)). فقرې د بڼې او اړيکو له مخې بېلا بېل ډولونه لري: کوچنۍ فقرې او لويې فقرې. لويې فقرې بيا په خپلواکو او مقيدو فقرو وېشل کېږي. دا چې جمله تر ټولو ستر يا بشپړ نحوي واحد دی، نو دلته يې درپېژنو:

**جمله**:

جمله عربي کلمه ده. لغوي معنا يې ټولګه يا مجموعه ده او په اصطلاح کې د الفاظو او کلمو يو داسې ترکيب چې يو بشپړ مفهوم افاده کړي، جمله بلل کېږي. يا په بله وينا: جمله د يوې ژبې هغه خپلواکه ګرامري بڼه ده چې د جوړښت او معنا له مخې پوره او بشپړه وي. په جمله کې الفاظ او کلمې يوه له بلې سره نحوي اړيکې لري او خپلواکه پوره معنا او مفهوم وړاندې کوي.

د جملې د جوړښت توکي:

د يوې بشپړې جملې په جوړښت کې خپلواک توکي او مرستيال توکي ونډه لري. په

خپلواکو توکو کې خپلواکې کلمې، لکه: نومونه، ځيز نومونه، صفتونه، نومځري (ضمرونه) او قيدونه راځي او په کومکي توکو کې ادات، لاحقې يا وروستاړي او مختاړي او داسې نور راځي.

د جملې اساسي برخې:

هره جمله دوې بنسټيزې او اساسي برخې لري: مبتدا اوخبر.

۱ــ مبتدا (مسند اليه يا فاعل):

مبتدا په گرامري توگه د يوې خپلواکې معنا لرونکې جملې برخه گڼل کېږي او په جمله کې د هغه په باب خبر ورکول کېږي، لکه په دې لاندې جملو کې:

لمر راوخوت، خلك خپل کار کوي. تېل توی شول.

په پورته جملو کې (لمر، خلك، تېل) د جملو مبتداوې دي.

۲ــ خبر (مسند ــ فعل):

خبر هم د جملې اساسي او مهمه برخه جوړوي. دا د جملې هغه برخه ده چې د مبتدا حال ځرگندوي. خبر د جوړښت له مخې په ساده او مرکب باندې بېلېږي.

خبر په دوه ډوله دی: اسمي خبر او فعلي خبر.

هغه جملې چې د خبر په برخه کې يې پوره فعل يا فعلي ترکيب راغلی وي، د فعلي جملې په نوم يادېږي او هغه چې مبتدا او خبر دواړه نومونه وي، اسمي جملې ورته وايي.

د پښتو د جملې په جوړښت کې يوه مهمه ځانگړنه دا ده چې مبتدا او خبر مطابقت او سمون سره لري. دا سمون د جملې د فعل او فاعل يا مبتدا او خبر تر منځ د دريو اړخونو (د شخص، جنس او عدد) له مخې موجود وي.

د جملې ډولونه:

جمله د بڼې او جوړښت له مخې په ساده او مرکبه باندې وېشل کېږي.

۳ـ ساده جمله: هغه جمله ده چې له يوه فاعل او يوه فعل يا له يوې مبتدا او يوه خبر څخه جوړه وي.

لکه: احمد راغی، لمر پرېوت.

٤ـ مرکبه جمله: هغه ده چې له دوو يا زياتو ساده جملوڅخه جوړه وي.

لکه: لمر راوخوت، نړۍ رڼا شوه. احمد راغی، کتاب يې راووړ.

جمله د معنا له مخې په دوو سترو ډولونو وېشل کېږي، خبري، ناخبري.

٥ـ خبري جمله: دې ډول جملې ته بياني جمله هم وايي. د يوه څيز د حال او کيفيت بيان او څرگندويي کوي.

يا په بله ژبه، يو فکر د خبر په بڼه بيانوي، لکه: احمد شاه بابا د افغانستان نوميالی واکمن تېر شوی دی. زموږ ښوونکی ډېره ورتيا لري.

٦ـ ناخبري يا انشايي جمله:

ناخبري جملې دا لاندې ډولونه لري:

## امريه جمله:

چې د ويناوال موخه پکې د يوه کار غوښتنه، د امر، حکم، هيلې، بلنې، مشورې او اخطار په بڼه وي.

لکه: درس ولوله! کار وکړه.

## د پوښتنې جمله:

د ويونکي مطلب او موخه پکې پوښتنه او له مقابل لوري څخه د ځواب غوښتنه وي، لکه: څه وخت راغلې؟ چېرته ځې؟ او نور...

**تعجبي جمله**:

د حيرانتيا په حالت کې ويل کېږي، يا د حيرانۍ ښکاره کوي.

لکه: څومره ښه خلک دي! څه کارونه يې ونه کړل!

**تمنايي جمله**:

د غوښتنې او هيلې مفهوم پکې نغښتی وي،

لکه: کاشکې لاړ شم! ارمان چې راغلی وای!

شکي احتمالي جمله:

چې مقصد او مطلب پکې ثابت نه وي او شخص په دوو کې حيران او دوه زړی وي،

لکه: ښايي زه هم ولاړ شم، ګوندې مرسته را سره وکړي.

**ټينګاري جمله**:

د تاکيد او ټينګار په موخه او مقصد راځي،

لکه: خامخا به راځې، حتمي ورشه!

**قسميه جمله**:

چې په يوه کار باندې د خلکو د باور کولو لپاره په يوه سپېڅلي ذات باندې قسم او لوړه ښکاره کوي.

لکه: خدايېږو څه به نه وايم، په خدای چې ورځم.

**دعائيه جمله**:

د خير ښېګڼې غوښتلو او ښکاره کولو لپاره ويل کېږي.

لکه: ځه الله دې مل شه! خدای دې په خپل مقصد کې کامياب کړه.

د متن لنډیز:

د نحوې لغوي معنا لاره او روش ده، په اصطلاح کې د ګرامر هغه برخه ده چې په جمله کې د کلمو مطابقت، اړیکو او ترکیب په هکله بحث کوي.

په نحوي واحدونو کې تګمیم، ترکیب، فقره او جمله شامل دي. دا ټول د جملو په جوړښت کې رغنده ونډه لري. جمله تر ټولو ستر نحوي واحد دی. لغوي معنا یې ټولګه یا مجموعه ده او په اصطلاح کې د کلمو یو داسې ترکیب دی چې بشپړ مفهوم افاده کوي. جمله دوې اساسي برخې لري: مبتدا او خبر. دا دواړه د جملې داسې برخې دي چې له هغو پرته بشپړه جمله نه جوړېږي. جمله د بنې او جوړښت له مخې په ساده او مرکبه وېشل کېږي.

او د معنا له مخې جمله په خبري او ناخبري یا بیاني انشايي باندې وېشل شوې ده. انشايي جمله، قسمیه جمله او دعائیه جمله.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله په غور او دقت سره ولولي. د متن ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي.

۲ـ ښوونکی دې د زده کوونکو له خوا په نښه شوې ستونزمنې کلمې د تختې پر مخ ولیکي او هغه دې پر زده کوونکو یا په خپله معنا کړي.

۳ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د متن یوه یوه برخه د ټولګیوالو په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د متن په سمون کې له هغوی سره مرسته وکړي.

٤ـ دوه دوه زده کوونکي دې په نوبت سره د ټولګي مخې ته وروبلل شي. یو تن دې یوه بشپړه جمله پر تختې ولیکي او بل زده کوونکی دې په هغې کې د مبتدا او خبر برخه په ګوته کړي.

۵ـ ښوونکی دې داسې کلمې چې د جملې بېل بېل توکي دي، په بې ترتیبه بڼې د تختې پر مخ ولیکي، یو زده کوونکی دې تختې ته وروبولي چې له هغو څخه بشپړه جمله جوړه کړي. دا لړۍ دې تر پایه په ټولو زده کوونکو پلې کړای شي.

٦ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، یوه ډله د معنا له مخې د جملې ډولونه ولیکي او د هر ډول لپاره دې درې جملې جوړې کړي. بله ډله دې د ناخبري یا انشایي جملې ډولونه او د هر ډول لپاره درې درې جملې جوړې کړي. د هرې ډلې استازی دې د جملې ډولونه او د هغو مثالونه په ټولګي کې ولولي. ښوونکی دې د اړتیا په مهال مرسته ورسره وکړي.

۷ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- د جملې اساسي او بنسټیزې برخې کومې دي؟
- جمله د جوړښت له مخې په کومو ډولونو وېشل کېږي؟
- جمله د معنا له مخې، کوم ډولونه لري، نومونه یې واخلئ.
- د ناخبري یا انشایي جملې ډولونه کوم دي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د معنا له مخې د جملې د ډولونو لپاره پنځه پنځه جملې ولیکي او په راتلونکي پښتو ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ولولي.

# ورزش
## (خبري اترې)




ـ ورزش څه ته وايي؟

ـ ورزش څه گټې لري؟

ـ څوك د څو لوبو نومونه اخيستلی شي؟

ـ كومه ورزشي لوبه مو ډېره خوښېږي؟

ورزش په ژوند كې ستر روغتيايي ارزښت او اهميت لري. كه له يوې خوا ورزش ډېره غوره بوختيا ده، نوله بلې خوا د انسان په فزيكي او روحي روزنې باندې ډېرې گټورې اغېزې لري. په دې لوست كې مو درته د ورزش په هكله د خبرو اترو په بڼه يو لړ معلومات وړاندې كړي چې هم له ورزش سره آشنايي پيدا كړئ او هم مو په پښتو ژبه د خبرو اترو كولو مهارت او ځواك پياوړی شي.

## خبرې اترې (محاوره)

(زلمی او کاروان د ورزش په اړه خبرې اترې کوي)

زلمی: السلام علیکم، کاروانه وروره!

کاروان: وعلیکم السلام، هر کله راشې!

چېرته روان يې زلمیه وروره!

زلمی: تر تا پورې راغلم کاروانه! يو څو پوښتنې لرم.

وروره! ته خو يو تکړه ورزشکار يې، کوم ورزش (لوبه) تر نورو غوره ده؟

کاروان: دا پوښتنه دې څنګه وکړه؟

زلمی: په ښوونځي کې د سپورت ښوونکي کورنی دنده راسپارلې چې په دې اړه معلومات را ټول کړم.

کاروان: ښه چې داسې ده، درته يې وايم. ګوره وروره! هره لوبه پر خپل ځای غوره او مهمه ده. چاته يوه او چاته بله ښه ښکاري.

زلمی: زموږ په هېواد کې کومې لوبې دود دي؟

کاروان: ډېرې لوبې دي، لکه: واليبال، فوټبال، هاکي، باسکټبال او ... .

زلمی: هو! وزلوبه (بزکشي)، غېږې نيول، سوک وهنه (بوکس) کراټه او تکواندو هم زموږ د هېواد په لوبو کې ځای لري. په دې وروستيو وختونو کې کرکټ هم ډېر مينه وال موندلي دي.

زلمی: مشران وايي چې کرکټ پخوا زموږ په هېواد کې دود نه و.

کاروان: هو! دغه لوبه اوس اوس رواج شوې ده او په پوره بريالیتوب مخ په وړاندې روانه ده. افغاني لوبغاړو يې نړيوال شهرت او مقام تر لاسه کړی دی.

زلمی: د لوبو په اړه يو څه نور معلومات را کولای شې؟

کاروان: اوس خو وخت نه لرم، بله ورځ به معلومات درکړم.

زلمی: سمه ده، کور دې ودان، کاروانه وروره بيا به سره وګورو.

## دویمه مرکه (د لومړۍ مرکې په تعقیب)

زلمی: ستړې مه شې کاروانه وروره!

کاروان: ښاد اوسې زلمیه وروره! عمر دې ډېر شه!

ځنګه را پېښ شوې زلمی جانه!

زلمی: غواړم چې خپله وعده پوره کړې او د لوبو په اړه نور معلومات هم راکړې.

کاروان: ولې نه، خو ستا له لوبو سره ځنګه مینه پیدا شوه؟

زلمی: کورنۍ دندې ته د معلوماتو د را ټولولو په وخت کې مې په یوه مجله کې د ورزش ډېرې ګټې ولوستې چې یوه یې د بدن روغتیا ده، ځکه مې مینه ورسره پیدا شوه.

کاروان: هو! ورزش کول د صحت او سلامتیا بنسټ جوړوي، خو چې په منظم ډول وشي.

زلمی: د دې خبرې څه معنا؟

کاروان: معنا یې دا ده چې هر ډول ورزش چې کوې، نو اصول به یې زده کوې او قضا کوې به یې هم نه.

زلمی: کاروان جانه! دا وزلوبه یا بزکشي هم ورزش کېدلای شي؟

کاروان: ولې نه، وزلوبه هم ورزش دی؛ خو هر څوک یې نشي کولای، ځکه چې خطرناکه ده او خاص لوبغاړي یې ورته روزل کیږي.

زلمی: ما چې په تلوېزیون کې ولیده، ډېره خطرناکه معلومېده،

کاروان: تلوېزیون او مخامخ لیدل یې بیا ډېر توپیر لري. که پر میدان دې ولیده، نو پر لوبغاړو به یې آفرین ووایې.

زلمی: کاروانه وروره! غېږې نیول خو به ورزش نه وي؟

کاروان: ته اشتباه مه کوه، غېږې نیول هم ورزش دی.

زلمی: چې داسې ده، نو حمید خو هم ورزشکار دی، ځکه هغه هم غبړې نیسي.

کاروان: کومه لوبه یې ګټلې ده که نه؟

زلمی: هو! هره لوبه یې ګټلې ده، هغه تراوسه چا نه دی ځملولی، ډېر مشهور دی.

کاروان: د کوم کلپ غړیتوب لري؟

زلمی: نه! په هېچا پورې نه دی تړلی، په خپل سر آزادې لوبې کوي.

کاروان: که چېرې د کوم کلپ غړی شي، نو لا به بریالی شي.

زلمی: دا څنګه؟

کاروان: دا په دې چې د لوبو په فني اصولو به پوه شي، نور به هم تکړه شي او د لوبې اتل به شي.

زلمی: چې داسې ده، نو زه به یې له تا سره مخامخ کړم، ته به یې پوه کړې.

کاروان: ولې نه! زه هر وخت لارښوونې او مرستې ته تیار یم.

زلمی: ښه کاروانه وروره، زه اوس ځم چې خپل درسونه ولولم.

کاروان: الله دې مل شه.

د متن لنډیز:

په دې متن کې زلمی او کاروان د ورزش او د هغه د ګټو په اړه خبرې کوي. زلمی د ورزش په هکله له کاروان څخه معلومات اخلي. کاروان سربېره پر دې چې د بېلا بېلو لوبو په پېژندنه کې له زلمي سره مرسته کوي. د ورزش فکري او جسمي ګټې هم ورته بیانوي او هغه ته ډېر په زړه پورې معلومات ورکوي.



## فعالیتونه

۱ــ زده کوونکي دې لوست یو ځل په پټه خوله ولولي چې د لوستلو مهارت یې پیاوړی شي. بیا دې یو یو زده کوونکی د لوست یوه یوه برخه په لوړ آواز ولولي.

۲ــ دوه دوه زده کوونکي دې په وار سره د نورو مخې ته ودرېږي، لوست دې د زلمي او کاروان په ځای په لوړ آواز ولولي.

۳ــ زده کوونکي دې لاندې کلمې تر لیکلو وروسته معنا او په جملو کې وکاروي:

ــ بنیاد ــ لوبغاړی ــ صحت او سلامتیا

ــ اتل ــ فني ــ کلپ

٤ــ دوه کسان دې په خپله خوښه د یوې لوبې په اړه خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي.

٥ــ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي: یوه ډله دې د محلي او سیمه ییزو لوبو نومونه ولیکي او بله ډله دې د نړیوالو یا المپیک د لوبو نومونه ولیکي. بیا دې دوه تنه د ډلو په استازیتوب په ټولګي کې دغه نومونه واوروي.

٦ــ په لاندې جملوکې صفتونه پیدا کړئ:

- زلمی، زرګی او ځیرک په یوه ټولګي کې لوست وایي، هغوی هره ورځ یو ځای ښوونځي ته ځي.
- حامد نوی موټر اخیستی، د هغه د موټر رنګ سور دی.
- توریپکۍ او ښاپېرۍ د ایمل خویندې دي. دوی دواړه تورې جامې اغوندي.

۷ـ لاندې کلمې او د هغو مترادف په خپلو کتابچو کې ولیکئ:

| دود | ښاد | بنیاد |
|---|---|---|
| بریالیتوب | مینه | فرق |
| ودان | ګټه | بریالی |

۸ـ زده کوونکي دې د بېلابېلو لوبو په اړه په وار سره خبرې وکړي او ګټې دې بیان کړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د وزلوبې (بزکشي) په اړه له خپلو مشرانو، کتابونو یا نورو منابعو څخه معلومات تر لاسه کړي او بیا دې هغه په بل درسي ساعت کې خپلو ټولګیوالو ته واوروي.

ورزش که له یوې خوا ستاسې روغتیا ته ګټه لري، نو له بل پلوه ستاسې ترمنځ د دوستۍ او صمیمیت اړیکې هم ټینګوي.

# نصيحت



ـ څوک ویلای شي چې نصیحت څه ته وایي؟

ـ نصیحت اورېدل او پرې عمل کول څه ګټه لري؟

ـ د چا نصیحت باید واورېدل شي؟

نصیحت د عالمانو، پوهانو او مشرانو ویناوې دي. په دغو ویناوو کې د نېکو او غوره چارو د سرته رسولو لپاره هڅونې کېږي. همدارنګه پکې له ناوړه کارونو څخه د منعه کولو لپاره هم لازمې لارښوونې شوې وي.

پوهان او مشران دغه ډول ویناوې د خپلې پوهې او تجربو په رڼا کې د خپل مکلفیت او مسوولیت له مخې نورو ته کوي. په دې لوست کې د عبدالقادر خان خټک یو شعر لولو چې ډېر غوره نصیحتونه پکې نغښتي دي:

مه شه خوښ د پاچاهۍ په تخت ختلو
همېشه يې غم کوه د پرېوتلو
چې يې اوس کړې په مظلومو ردې ردې
غافل مه شه د دې سترګو د وتلو
چې پېشه يې همېشه دل آزاري وي
د هغو مخونه نه دي د کتلو
ځکه تل کړې په زر دوزو جامو کبر
چې غافل يې د کفن د اغوستلو
د اجل د ستورو تاخت ناګهاني دی
چې هېڅ کور يې نه خلاصېږي له نتلو
هغه زړه عبدالقادره چې مرده وي
په ګوګل دننه نه دی د ساتلو
(عبدالقادر خان خټک

عبدالقادر خان خټک:
د پښتو ژبې نوميالی او خوږ ژبی شاعر، د خوشحال خان خټک زوی په (١٠٦٣) هجري قمري کال کې د پښتونخوا، پېښور په اکوړه خټک کې زېږېدلی و. تر (١١٢٥) هجري قمري کال پورې يې ژوند يقيني دی. د لوړې پوهې او ادبي استعداد څښتن و. په نظم او نثر کې يې ډېر کتابونه ليکلي او ژباړلي دي. ځينې آثار يې چې اوس موږ په واک کې لرو، دا دي: د اشعارو ديوان (حديقه خټک)، ګلدسته، يوسف زليخا، څلوېښت حديثونه، قصيده برده.

د متن لنډیز:

شاعر وايي چې د پاچاهی تخت ته په ختلو او لوړ مقام ته په رسېدلو مه خوشحالېږه، د دې په فکر او غم کې اوسه چې خامخا به یوه ورځ را نسکورېږي. ته چې نن په زور زیاتي پر خلکو سترګې راباسې، له دې څخه مه غافلېږه چې دا سترګې به دې یوه ورځ ښوک راوباسي. د هغه چا چې پېښه او دنده د خلکو ازارول وي، له هغې څخه باید خلک کرکه وکړي او په بده سترګه ورته وګوري. ته چې نن په دې زرینو لباسونو کې په کبر او غرور ګرځې، داسې ښکاري چې مرګی دې هېر دی او له کفن څخه غافل یې، اجل پر هر چا ناڅاپه برید کوي او د هغه له منګولو هیڅوک نه خلاصېږي. هغه زړه چې د خدای ﷻ په یاد ژوندی نه وي، درد او احساس پکې نه وي، هغه د ساتلو نه دی.

## فعالیتونه

۱ـ د ښوونکي له متن لوستلو او لازمو څرګندونو وروسته دې زده کوونکي متن په پټه خوله او دقت سره ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې په وار سره متن د ټولګیوالو په وړاندې ولولي، ښوونکی دې د اړتیا په مهال ورسره مرسته وکړي.

۳ـ دوه دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوبلل شي، یو دې د شعر یو بیت ولولي او هغه بل دې د هغه معنا او مفهوم نورو ټولګیوالو ته ووایي. دا لړۍ دې په ټول ټولګي کې پلې کړي.

٤ـ زده کوونکي دې وګومارل شي چې متن په غور ولولي او په هغه کې دې فعلونه په نښه کړي. ښوونکی دې په نښه کړي فعلونه د تختې پر مخ ولیکي او زده کوونکي دې په نوبت سره تختې ته ورشي او هغه دې په مناسبو جملو کې وکاروي.

**فعل**: هغې کلمې ته وايي چې په يوه زمانه يا ټاکلي وخت کې د يوه کار يا يوې پېښې په کېدو يا د يوه حالت په راڅرګندېدو دلالت کوي. لکه: راغی، وايي، را به شي، خوري.

فعل د زمانې په لحاظ په درې ډوله دی: تېر مهال (ماضي)، اوسمهال (حال)، راتلونکی مهال (مستقبل).

۵ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې د کچې ارزونه وشي:

- د زړونو آزارول څه ډول عمل دی؟
- کبر او غرور څه ډول کړنه ده؟
- څوک چې ظلم او زور زياتی کوي، انجام به يې څه وي؟
- کوم زړه ته مړ زړه ويلای شو؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د دې لاندې بيت توضيح او تشريح په خو کرښو مقاله کې وليکي او راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګيوالو ته ولولي:

چې پېشه يې همېشه دل آزاري وي
د هـغـو مـخـونـه نـه دي د کتلو

# زرغونه کاکړه (رح)




ـ تاسې د هېواد په پخوانیو نومیالیو مېرمنو کې د چا له نامه سره آشنا یاست؟

ـ آیا کومه پخوانۍ پښتنه شاعره پېژنئ؟

زموږ هېواد په خپله غېږ کې ډېر نومیالي زامن او لوڼې روزلې دي چې هغوی د علم، فرهنګ، سیاست، حکمت او نورو په ډګرونو کې ډېرې ویاړلې کړنې او کارنامې لري.

زموږ د هېواد په دغو نومیالیو کې یوه هم زرغونه کاکړه (رح) وه چې له لوړې پوهې او هنر څخه برخمنه وه. په دې لوست کې یې درپېژنو.

زرغونه کاکړه د ملا دین محمد لور وه. د کندهار په پنجوایي کې اوسېدله. د زوکړې کال يې (۸۸٤ هجري قمري) اټکل شوی دی.

زرغونې کاکړې مروجه ديني علوم، د نظم او نثر کتابونه له خپل پلار څخه لوستي وو. وروسته يې له علم او ادب سره د زياتې مينې له امله د ډېرو ديني او ادبي کتابونو مطالعه وکړه. د خطاطۍ هنر يې هم زده و. زرغونه د دين په احکامو، د علم، عرفان، فصاحت او بلاغت په مسايلو ښه پوهېده. دغې عالمې او فاضلې مېرمنې له سعدالله خان نورزي سره واده کړی او د ژوند شپې او ورځې يې په عبادت او رياضت تېرولې.

زرغونې کاکړې په (۹۰۳ هجري قمري) کال د شيخ مصلح الدين سعدي شيرازي مشهور کتاب ((بوستان)) پښتو ته ژباړلی و. د پټې خزانې مؤلف محمد هوتک وايي چې زما پلار د زرغونې کاکړې د پښتو بوستان يوه نسخه چې نوموړې په خپل ښکلي خط ليکلې وه، په (۱۱۰۲ هجري قمري) کال کې ليدلې او لوستلې وه.

محمد هوتک په پټې خزانې کې د زرغونې کاکړې د علم، اخلاقو او فضيلت ډېره ستاينه کړې او ليکلي يې دي چې: ((زرغونې کاکړې هر ډول خطونه ليکلی شول او کاتبانو به د هغې د ښکلي خط له مخې خط زده کاوه. زرغونه کاکړه ډېره ښه شاعره هم وه. ډېر شعرونه يې درلودل او د خپل وخت په ادبيانو کې يې پوره نوم او شهرت درلود.))

د زرغونې د شعرونو ديوان او د شعر نورې بېلګې تر اوسه نه دي تر لاسه شوي. يو شعر يې محمد هوتک د خپل کتاب پټې خزانې په وسيله تر موږ را رسولی دی. د پښتو ادبياتو تاريخ دويم ټوک ليکوال د زرغونې کاکړې د ژوند د حالاتو او د شعر په هکله ليکلي دي:

((که موږ په پښتو ادب کې د اخلاقي شاعرانو لپاره يوه مخصوصه ډله ومنو، نو زرغونه کاکړه به په خپل پښتو بوستان سره د هغوی په سر کې ولاړه وي. موږ زرغونه د شيخ سعدي (رح) د بوستان په منظومه ترجمه د اخلاقي شاعرانو له ډلې څخه بللی شو.))

زرغونه کاکړه په خپل عصر کې لويه عارفه، عالمه، فاضله مېرمن او د پښتو ژبې پياوړې شاعره وه.

دلته يې د شعر يوه بېلگه لولو:

## حکايت

اورېدلي مې قصه ده — چې له شاتو نه خوږه ده
د اختر په ورځ سهار — بايزيد چې و رويدار
له حمامه را وتلی — په کوڅه کې تېرېدلی
ايرې خاورې چا له بامه — راچپه کړلې ناپامه
مخ او سر يې سو ککړ — په ايرو په خاورو خړ
بايزيد په شکر کښېنو سو — د خپل مخ په پاکېدو سو
وې چې زه ور يم د اور — چې په اور کې سم نسکور
له ايرو به څه بد ورمه — يا به لړ شکوه کومه
هو پوهانو ځان ايرې کړ — له لويني يې ځان پرې کړ
څوک چې ځانته گوري تل — خدای ته نشي کړای کتل
لويي تل په گفتار نه ده — لو خبره پکار نه ده

تواضع به دې سر لوړ کا
تکبر به دې تل څوړ کا

د متن لنډيز:

زرغونه کاکړه د ملا دين محمد کاکړ لور زموږ د هېواد يوه نوميالی عالمه او فاضله مېرمن وه. په (٨٨٤ هجری قمري) کال يې د کندهار د پنجوايي په سيمه کې سترگې نړۍ ته پرانستي وې. له سعدالله خان نورزي سره يې واده کړی او د ژوند شپې او ورځې يې د حق په عبادت او رياضيت تېرولې. زرغونه کاکړه د پښتو ژبې شاعره هم وه. د شيخ سعدي(رح) بوستان يې په پښتو نظم ژباړلی و. ښه خطاطه هم وه.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله او دقت سره ولولي، ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي. ښوونکی دی هغه د تختې پر مخ د زده کوونکو په مرسته او یا په خپله حل او توضیح کړي.

۲ ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د متن یو یو پرګراف د ټولګیوالو په وړاندې ولولي. ښوونکی دې له هغوی سره د اړتیا پر مهال مرسته وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې پر دوو ډلو وویشل شي او دې ته دې وګومارل شي چې یوه ډله په متن کې خاص نومونه او بله عام نومونه په نښه کړي. د هرې ډلې استازی دې د خپل ګروپ په نښه کړي خاص او عام نومونه د تختې پر مخ ولیکي. ښوونکی دې د هغو په اړه لاندې څرګندونې وکړي:

> خاص نوم: هغه نوم دی چې یو خاص شخص، ځای او څیز نوموي، لکه: زرغونه کاکړه، احمد شاه بابا.
>
> عام نوم: چې په عامه توګه یو شی یا څیز نوموي، لکه: قلم، کال او نور.

٤ـ یو یو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د زرغونې کاکړې د شعر مفهوم ټولګیوالو ته ووایي. ښوونکی دې په سمون کې ورسره مرسته وکړي.

٥ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- زرغونه کاکړه د چا لور او د کوم ځای اوسېدونکې وه؟
- د زرغونې کاکړې احوال مورږ ته چا، د کوم کتاب په وسیله را رسولی دی؟
- زرغونې کاکړې کوم کتاب په پښتو نظم ژباړلی دی؟
- زرغونې کاکړې له شاعرۍ پرته بل کوم هنر زده کړی و؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کومې بلې ښځینه پښتو شاعرې په هکله لنډ معلومات ولیکي او هغه دې په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې ټولګیوالو ته ووایي.

# ملي يووالی



ـ ملي يووالی څه ته وايي؟

ـ که د يوې سيمې يا هېواد وګړي په خپلو کې تړون او يووالی ونه لري، له کومو ستونزو سره به مخامخ شي؟

افغانستان د ټولو استوګنو قومونو ګډ کور دی. زموږ د هېواد وګړي ګډ تاريخ او کلتور لري او د تاريخ په اوږدو کې دې مېشتو قومونو په ګډه له خپل هېواد او ټاټوبي څخه ساتنه کړې او خپل ملي يووالی يې په هر حالت کې ساتلی دی.

په دې لوست کې ملي يووالی درپېژنو، په ارزښت او اهميت يې بحث کوو.

هغه خلک چې په یوې ټاکلې جغرافیایي سیمې کې استوګنه لري، ګډ او شریک تاریخ، فرهنګ، عنعنات او ملي ویاړونه لري، یو ملت بلل کېږي. د نړۍ پرمخ ټول ملتونه او هېوادونه له بېلابېلو قومونو او قبیلو څخه جوړ دي. دوی د ګډ بر خلیک خاوندان دي. تر یوه بیرغ لاندې را ټول او په یوه نامه یادېږي.

زموږ ګران هېواد افغانستان د یوه واحد ملت په توګه د ټولو افغانانو ګډ کور دی. دا چې ټولو په دې ستر او تاریخي کور کې سترګې نړۍ ته غړولي او د دې هېواد په سپېڅلو اوبو او هوا کې را لوی شوي، د یوه افغان په نامه یادېږي، نو باید یو له بل سره مینه او په خپلو منځو کې ژور ملي تړون، ټینګ یووالی ولري او تر یوه بېرغ لاندې ژوند وکړي.

زموږ د هېواد اوسېدونکو د تاریخ په اوږدو کې ګډ ژوند کړی دی. ټولو له خپلې خاورې، ملي نوامیسو او ځمکنۍ بشپړتیا څخه په ګډه دفاع اوساتنه کړې ده.

دا هېواد پر موږ ټولو افغانانو حق لري چې د ودانۍ، سوکالۍ، سراسري سولې، امن او ملي وحدت د ساتلو لپاره یې هر ډول سربښندنو ته چمتو اوسو.

په هېواد کې د ملي یووالي د ټینګښت او پیاوړتیا لپاره دا تر هر څه اړینه اوضروري ده چې هر ډول توپیرونه له منځه یوسو. یو بل ته باید د وروروللۍ غېږه پرانیزو او په ټولو ملي چارو کې د یوه واحد ملت په توګه ثابت دریځ ولرو.

که د نړۍ لویو او پر مختللو هېوادونو ته وګورو، نو راته څرګندېږي چې هغوی تر هر څه لومړی هغه بېلا بېل توپیرونه چې د دوی د ملي یووالي په زیان تمامېږي، له منځه وړي دي. پر ځای یې په پوره یووالي د علم، پوهې او ټکنالوژۍ خواته مخه کړې ده. د نړۍ د غو پر مختللو ولسونو بشري او انساني کرامت ته په درناوي په خپلو کې د ملي یووالي پیاوړې روحیه رامنځته کړې ده.

په یوې ټولنې یا هېواد کې د ملي یووالي په له منځه تللو سره، هغه هېواد او ټولنه له سترې ګډوډۍ سره مخامخ کېږي. د ملي وحدت د نشتوالي په صورت کې د حق او رښتینولۍ

روحیه کمزورې کېږي. زور زیاتی او نابرابري له یوې ورځې څخه بلې ته زیاتېږي. تر څنګ یې د خوابدیو، خپل منځي شخړو او د ښمنیو لمنه پراخېږي. په دې ترتیب د هېواد بهرنیو د ښمنانو ته د هر ډول لاس وهنو لارې چارې برابرېږي.

موږ باید د خپل ملي یووالي په ارزښت او اهمیت پوه شو، دا په ژوره توګه درک کړو چې زموږ د هېواد ودانې او نېکمرغي په همدغه ملي یووالي کې نغښتې ده. باید چې د ملي یووالي د ساتنې لپاره پراخې او هر اړخیزې هلې ځلې وکړو. د ځانې ګټو او غوښتنو پر ځای د ملي ګټو درناوی وکړو. په پوره هوښیارۍ او ځیرکتیا باید هغه عوامل معلوم کړو او له منځه یې یوسو چې زموږ ملي یووالي ته زیان رسوي، بنسټونه یې کمزوري کوي او د وخت په تېرېدو یې له منځه وړي.

د متن لنډیز:

ملي یووالی د هر هېواد د پرمختګ، سوکالۍ او نېکمرغۍ لپاره ډېر ضروري دی، نو د ساتلو او ټینګښت لپاره یې باید کلکې او هر اړخیزې هڅې او کوښښونه وشي. که په کوم هېواد کې د ملي وحدت مزي سست یا وشلېږي، نو هغه له سترو ګډوډیو او بې شمېره بد مرغیو سره مخامخ کېږي. د همدغه ملي وحدت د نشتوالي په صورت کې بهرنیو دښمنانو ته د ډول ډول لاس وهنو لارې چارې برابرېږي.

## فعالیتونه

۱ـ د ښوونکي له متن لوستنې او لازمو څرګندونو وروسته دې زده کوونکي متن په غور او دقت په پټه خوله ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د متن یو یو پرګراف د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

ښوونکی دې د اړتیا پر مهال ورسره مرسته وکړي.

۳_ زده کوونکي دې په نوبت سره د ملي وحدت، د هغه د ارزښت او اهمیت په هکله نورو ټولګیوالو ته خبرې وکړي.

٤_ ښوونکی دې دا لاندې پوښتنې د تختې پر مخ ولیکي او له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې د هغو ځوابونه په خپلو کتابچو کې ولیکي:

- ملي یووالی څه شی دی؟
- ملي یووالی څه ګټې لري؟
- بې اتفاقي یا نفاق څه زیانونه لري؟
- د ملي یووالي د ټینګښت لپاره څه شي ته ډېره اړتیا ده؟
- تاسې به د ملي یووالي د ټینګښت لپاره څه کارونه وکړئ؟

٥_ د ګرامر له مخې، په دې لاندې جملو کې له سمې جملې څخه په پنسل کرښه چاپېره کړئ:

الف: افغانستان د ټول افغانانو ګډ کور دی.

ب: افغانستان د ټولو افغانان ګډ هېواد دی.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ملي یووالي په هکله څو کرښې مقاله ولیکي او په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ولولي.

# د پښتو نثر لنډه تاریخچه




ـ څوك ويلی شي چې نثر څه ته وايي؟

ـ نظم او نثر څه توپير لري؟

ـ د پښتو نثر کوم پخوانی ليکلی کتاب در معلوم دی؟

د نثر لغوي معنا شيندل، پاشل او تيتول دي او په ادبي اصطلاح کې هغه ليکنه ده چې د وزن او قافيې له قيد او بند څخه آزاده وي.

هره ژبه دوه ډوله آثار لري: يو يې منظوم آثار دي چې په شعر ليکل شوي او بل يې منثور آثار دي چې په نثر ليکل شوي دي. پښتو ژبه دا دواړه ډوله آثار لري. دلته موږ په دې لوست کې د پښتو نثر پر لنډ تاريخي بهير بحث کوو:

پښتو ژبه ډېر لرغونی تاریخ او بډایه فرهنګي شتمني لري. د فرهنګي شتمنۍ ډېره ستره برخه په نظم او نثر لیکلي او شفاهي ادبیات دي چې د تاریخ په اوږدو کې رامنځته شوي دي. دغه ادبیات د شعر او نثر په بېلا بېلو کالبونو کې خوندي دي. سره له دې چې د پښتو ژبې د منظومو او منثورو آثارو ډېره برخه د زمانو د پېښو په بهیر کې ضایع شوې ده، بیا هم هغه چې له دغو توفانونو خوندي پاتې دي او موږ یې په واک کې لرو، د پښتو ژبې د فرهنګي بډاینې ښه څرګندویي کولای شي.

د پښتو نثري آثارو د تاریخي بهیر په لړ کې، لومړنی معلوم لیکوال ابو محمد هاشم ابن الزید السرواني (۲۲۳ هـ.ق. زوکړی) دی چې د ((سالو وږمه)) په نوم یې د پښتو نثر یو کتاب لیکلی دی. دغه کتاب تر اوسه نه دی تر لاسه شوی، د پټې خزانې لیکوال محمد هوتک، موږ ته دغه کتاب او د هغه لیکوال راپېژني.

دغه کتاب د عربي اشعارو د فصاحت او بلاغت په باره کې لیکل شوی دی. له ابوهاشم سرواني څخه وروسته بل معلوم لیکوال چې په پښتو نثر یې د ((تذکرة الاولیاء)) په نوم له (۶۱۲ هـ.ق.) کال څخه وروسته یو کتاب لیکلی، هغه سلیمان ماکو دی. د دغه کتاب د سر څو پاڼې اوس زموږ په واک کې دي. په دغو څو تر لاسه شوو پاڼو کې څلور نومیالي پښتانه شاعران او عارفان معرفي شوي دي.

څرنګه چې د سلیمان ماکو تذکرة الاولیاء موږ ته د پښتو نثر لومړنۍ بېلګه په لاس راکوي، نو له دې امله دغه کتاب د پښتو ژبې په ادبي تاریخ کې له ستر ارزښت او اهمیت څخه برخمن دی. دغه نثر په موضوعي لحاظ د تاریخي نثرونو په ډله کې راځي، خو د جوړښت له مخې ساده نثر دی. ډېر کړکېچ او پېچلي ترکیبونه نه لري، درانه لغات هم په کې نه دي استعمال شوي او جملې یې لنډې لنډې دي.

له سلیمان ماکو څخه وروسته بیا تر لسمې هجري پېړۍ پورې، بل نثري کتاب په لاس کې نه لرو. البته د پټې خزانې لیکوال موږ د ځینو لیکوالو او د هغوی د نثري کتابونو له نومونو سره آشنا کوي چې په هغو کې د شیخ کټه ((لرغوني پښتانه))، د محمد بن علي

بستي ((تاريخ سوري)) او د ملا الله يار ((تحفة صالح)) د يادونې وړ دي چې په اوومه، اتمه او نهمه هجري پېړۍ کې ليکل شوي دي.

له لسمې هجري پېړۍ څخه را وروسته بيا موږ د پښتو نثر ډېر ليکلي کتابونه لرو. په هغو کې په لسمه هجری پېړۍ کې د بايزيد روښان ليکلی اثر ((خير البيان)) او د اخوند درويزه ((مخزن الاسلام)) کتابونو نومونه يادولی شو. دا دواړه کتابونه په پښتو مسجع نثر ليکل شوي او ديني موضوعات پکې راغلي دي.

خيرالبيان او مخزن الاسلام دواړه په مسجع يا قافيه وال نثر ليکل شوي دي، خو دا چې خيرالبيان دمخه ليکل شوی او مخزن الاسلام، اخوند درويزه د هغه د نثر ليکنې په تعقيب څو کاله وروسته تاليف کړی، نو ځکه بايزيد روښان د مسجع نثر ليکنې بنسټ ايښودونکی بلل شوی دی.

د مسجع نثر ليکنې دغه لاره د بايزيد روښان او اخوند درويزه پلويانو پاللې، وده او پرمختيا يې ورکړې او تر ډېرې مودې يې دوام موندلی دی.

په يوولسمه هجري پېړۍ کې خوشحال خان خټک او د هغه د کورنۍ غړو په نثر کې ځينې کتابونه ليکلي او ژباړلي دي. د خټکو دوره چې د پښتو ادب يوه زرينه دوره بلل کېږي، پښتو نثر ليکنې په کې د يادونې او ستاينې وړ وده او پرمختيا موندلې ده. د دې دورې د پښتو په نثري کتابونو کې د خوشحال خان خټک د بياض پر نثرونو سربېره د هغه ((دستارنامه))، د عبدالقادرخان خټک ((گلدسته))، د افضل خان خټک ((تاريخ مرصع)) او ((عيار دانش))، دگوهر خان خټک ژباړلی سيرت ((قلب السير)) او نورو نومونه د يادونې وړ دي. دا کتابونه په ساده او روان پښتو نثر ليکل شوي دي چې په نورو ادبي ښېگڼو سربېره يې د نثر ساده گي، رواني، وگړنۍ محاورې ته نږدېوالی له ډېرو مهمو ځانگړنو څخه دي. وروسته د هوتکو د واکمنی په دوران کی پښتو نثر ليکنې ډېر پرمختگ کړی دی. د ملا نورمحمد غلجي ((نافع المسلمين)) او د محمد هوتک ((پټه خزانه)) د دې دورې د نثر مشهور کتابونه دي چې نافع المسلمين په مسجع نثر او پټه خزانه په ساده روان نثر ليکل شوې ده. د احمدشاه

بابا د واکمنۍ پر مهال هم پښتو نثر وده او پر مختیا موندلې ده. د پیرمحمد کاکړ ((معرفت الافغاني))، د خان علوم (( د احمدشاه بابا د اشعارو پښتو شرحه)) او د عبدالله فتاوای احمد شاهي په همدغه دوره کې لیکل شوي کتابونه دي.

د دیارلسمې هجري پیړۍ په وروستیو کې د نوي او معاصر ادب د رامنځته کېدو لارې چارې برابرې شوې دي. د دې دورې لیکوالو په نثر کې د ساده لیکنې لاره خپله کړې ده او د پخواني متکلف او مسجع نثر لیکلو پر خلاف عام، د ولس محاورې ته نژدې کلیوالي او ولسي اصطلاحات، محاورې او متلونه هم په خپلو نثري لیکنو کې کارولي او هڅه یې کړې ده چې خپل نثري آثار د خلکو د پوهونې له پاره د هغوی په ژبه ولیکي. د دې ډول نثري آثارو په لړ کې د بېلګې په توګه د نورمحمد نوري افغانی ((غونچه روه)) (۱۲۸۰هـ.ق. تألیف) د مولوي احمد ((ګنج پښتو))، آدم خان درخانی، د میراحمدشاه رضواني ((شکرستان افغاني)) او ((بهارستان افغاني)) کې راغلي نثرونه او همدارنګه د میا حسیب ګل کاکاخېل ژباړلی ناول ((نقش نګین)) او د میا محمد یوسف ژباړلی ناول ((توبةالنصوح)) نومونه یادولی شو. دغه نثرونه په ساده ګۍ او روانۍ سربېره ادبي او هنري ارزښتونه هم لري او د نوو هنري نثرونو څرکونه پکې تر سترګو کېږي.

وروسته بیا د پښتو نثر هر اړخیزه وده او پرمختیا موندلې ده. د ساده او ژور نالستي نثرونو تر څنګ نوي هنري ادبي ژانرونه هم په پښتو ژبې او ادب کې دود شوي دي. دلته د هغو ادبي نثري ژانرونو نومونه اخلو چې په پښتو ژبه او ادب کې دود او موږ یې په خپلو ادبیاتو کې ډېرې بېلګې لرو.

لنډه کیسه، ناول، رومان، ډرامه، طنز، ادبي ټوټه، ادبي لیکونه، ادبي راپورتاژ، ادبي یونلیک (سفرنامه)، ادبي ځان پېښنې (خاطرې)، ادبي ژوندلیک (بیوګرافي)، تکل، ادبي انځور، فلمي سناریو او نور. اوس د پښتو نثر د ودې او پرمختیا یون په ډېرې چټکۍ سره روان دی او ډول ډول نثري آثار چاپ او خپرېږي.

د متن لنډيز:

پښتو ژبه بډايه فرهنګي زېرمه لري چې د هغې ستره برخه د دې ژبې منظوم او منثور ليکلي او شفاهي ادبيات جوړوي. د پښتو ژبې ډېر ليکلي آثار د زماني په خونړيو پېښو کې له منځه تللي او ډېر لږ ورځخه خوندي پاتې شوي دي. د پښتو نثر لومړنی کتاب چې موږ يې له نوم سره آشنا يو، هغه د ابوهاشم سرواني ليکلی اثر ((سالو وږمه)) دی چې پټې خزانې موږ ته را معرفي کړي. وروسته په اوومه هجري پېړۍ کې سليمان ماکو ((تذکرة الاولياء)) ليکلی او بيا په لسمه هجري پېړۍ کې بايزيد روښان او اخوند درويزه او د دې دواړو پيروانو په پښتو نثر کتابونه ليکلي دي. تر دې وروسته خوشحال خان او د هغه کورنۍ د نثر کتابونه ليکلي دي. د ديارلسمې هجري پېړۍ په وروستيو کې د پښتو ساده نثر ليکنه عامه شوې او ډېر پښتو کتابونه ليکل شوي دي. په اوسنۍ او معاصره دوره کې پښتو نثر ډېره وده او پرمختيا کړې او د نثر بېلا بېل ډولونه عام شوي او په هره برخه کې زيات شمېر آثار رامنځته شوي دي.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله په غور او دقت سره ولولي. ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي.

۲ـ ښوونکی دې د زده کوونکو په نښه کړې کلمې پر زده کوونکو او يا په خپله معنا او پر تختې وليکي.

۳ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن يو يو پرګراف ولولي. ښوونکي دې د اړتيا پر مهال مرسته ورسره وکړي.

٤ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي او دې ته دې وګومارل شي چې متن په غور سره ولولي. يوه ډله دې په متن کې د کتابونو نومونه او بله دې د اشخاصو نومونه په نښه کړي. د هرې ډلې استازی دې هغه په نښه کړي نومونه پر تختې وليکي. ښوونکی دې د هغو په هکله زده کوونکو ته لازمې څرګندونې وکړي.

٥ـ زده کوونکي دې په وار سره په ټولګي کې د لوستل شوي متن مفهوم په خپلو الفاظو او عبارتونو نورو ټولګيوالو ته ووايي.

٦ـ په دې لاندې پوښتنو دې د زده کوونکو د زده کړې ارزونه وشي:

- د پښتو نثر لومړنی کتاب څه نومېږي او چا ليکلی دی؟
- تذکرة الاولياء چا ليکلی او څه ډول کتاب دی؟
- د پښتو نثر د پنځو پخوانيو کتابونو نومونه واخلئ؟
- د پښتو نثر د پنځو پخوانيو ليکوالو نومونه واخلئ؟
- بايزيد روښان او اخوند درويزه خپل کتابونه (خيرالبيان او مخزن الاسلام) په کوم ډول نثر ليکلي دي؟
- خوشحال خټک او د هغه پيروانو خپل کتابونه په کوم ډول نثر ليکلي دي؟
- د هنري نثر د څينو ډولونو نومونه واخلئ.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د پښتو نثر يو کتاب په څو کرښو کې معرفي کړي او هغه دې په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې نورو ټولګيوالو ته ولولي.



# د بديع علم ـ لومړۍ برخه
# لفظي ادبي صنعتونه




ـ څوك د بديع علم پېژني؟

ـ د بديع علم له كومو ادبي صنعتونو څخه بحث كوي؟

ادبي فنون يو لړ ټاكلي اصول او موازين دي چې د هغو په وسيله د ادبي آثارو لفظي او معنوي ښېگڼې پېژندل كېږي.

بديع هغه پوهنه ده چې د وينا او كلام له ښكلا او هغو ادبي صنايعو څخه بحث كوي چې نظم اونثر ته ښكلا وربښي.

بديع له دوه ډوله ادبي صنعتونو څخه بحث كوي: يوه ته يې لفظي او بل ته يې معنوي صنعتونه وايي. په دې لوست كې لفظي ادبي صنعتونه درپېژنو:

ادبي فنون په عام مفهوم یو لړ ټاکلي اصول او موازين دي. د دغو موازینو په وسیله د ادبي آثارو لفظي او معنوي ښېګڼې یا په بله وینا ښکلاوې، هنري او ادبي ارزښتونه پېژندل کېږي. یا ادبي فنون هغه موازين تشريح کوي چې د هغو په وسیله کولای شو د ادبي آثارو لفظي او معنوي ښکلاوې وپېژنو.

ادبي فنون درې سترې څانګې لري: معاني، بیان او بدیع

دا چې موږ دلته لفظي صنایع درپېژنو، دا صنایع د ادبي فنون د ((بدیع)) په څانګې پورې اړه لري. د مخه تر دې چې د شعر دغه صنعتونه دروپېژنو، لازمه ده د بدیع علم په لغوي او اصطلاحي معنا پوه شو.

د بدیع لغوي معنا نوی، تازه او حېرانوونکی شی دی او په ادبي اصطلاح هغه پوهنه ده چې د وینا او کلام له ښکلا او هغو صنایعو څخه بحث کوي چې نظم او نثر ته ښکلا وربښي. د بدیع د علم وضعه کوونکی عبدالله بن معتز دی. نوموړي په (۲۷٤ هجري قمري) کال په دې اړه په عربي ژبه یو مفصل کتاب تألیف کړ او ورو ورو دغه پوهنه نورو ژبو ته خپره شوه. د بدیع د علم موضوع فصیحه او بلیغه ادبي ویناده او هغه څه ته چې د بلیغې وینا د ښکلا سبب کېږي، ادبي صنعتونه وایي.

ادبي صنعتونه دوه ډوله دي: لفظي صنعتونه او معنوي صنعتونه.

لفظي صنعتونه دا دي:

لفظي صنعتونه هغه دي چې په هغو کې د وینا ښکلا په کلمو پورې اړه ولري. که دغو کلمو ته د معنا په خوندي ساتنه بدلون ورکړو، د وینا ښکلا له منځه ځي. د لفظي صنعتونو شمېر زیات دی، د ځینو نومونه یې دا دي: تجنیس او د هغه بېلا بېل ډولونه، قلب، ذوالقوافي، اشتقاق، ترصیع، سیاق الاعداد، المربع، تکرار، تضمین، معما، منقوط، غیر منقوط، سجع او داسې نور.

څو مشهور لفظي صنعتونه له مثالونو سره دا دي:

### ۱_ تجنیس:

په لغت کې هم جنس کولو ته وایي او په اصطلاح کې هغه ادبي صنعت دی چې د شعر

په یو بیت یا نیم بیتي کې دوې یا زیاتې داسې کلمې راشي چې په لیک او لوست کې ټولې سره یو شی او یا یو څه سره ورته او په معنا کې سره بیلې وي.

تجنیس دا لاندې ډولونه لري:

(۱) تام تجنیس (۲) ناقص تجنیس (۳) زاید تجنیس

(٤) مرکب تجنیس، خطي تجنیس، مرفوع تجنیس او نور.

دلته د تام تجنیس یو مثال راوړو:

فـــراق پـــه مـــا خـــوري د زړگـــي ویـــنې:

آشـــنـــا مـــې نـشـتـه الله مـــې ویـــنـــي

(پیرمحمد کاکړ)

په پورته بیت کې((ویني)) کلمه په دواړو نیم بیتو کې راغلې ده. په لومړي نیم بیتي کې ((وینې)) د دري د (خون) په معنا او په دویم کې ((ویني)) د لیدلو په معنا دی چې تام تجنیس بلل کېږي.

**۱ـ قلب**:

په لغت کې سرچپه کولو ته وايي، د بدیع د علم په اصطلاح په یوه وینا کې د دوو یا زیاتو داسې کلمو راوړل وي چې توري یې په نوعه او عدد کې سره یو او په ترتیب کې سره اوښتي وي. قلب په څلور ډوله دی: قلب کل، قلب بعض، قلب مستوي، قلب منجنح.

دلته د (قلب کل) یو مثال راوړو:

زلـــفـــې پـــه مـــخ کـــړه خـــم پـــه خـم

کـــېـــنـــه و مـــا تـــه مـــخ پـــه مـخ

کـــېـــنـــه و مـــا تـــه مـــخ پـــه مـخ

زلـــفـــې پـــه مـــخ کـــړه خـــم پـــه خـم

په پورته مثال کې گورو چې (خم) په (خم) او (مخ) په (مخ) کلمې سرچپه شوي دي او د کلمې دواړه توري سره اوښتي دي، نو ځکه یې (قلب کل) بولي.

### ۲_ المربع:

هغه نظم یا شعر ته وایي چې یو شاعر یوه رباعي داسې راوړي چې عمودي او افقي یو ډول ولوستل شي.

د یـار لـه غمـه پـه زړه افـګار یـم
لـه غمـه څـه وایـم دردمنـد یـم خـوار یـم
پـه زړه دردمنـد یـم هـر ګـوره بیمـار یـم
افـګار یـم خـوار یـم بیمـار یـم زار یـم

پورتنی شعر عمودي او افقي یو شان لوستل کېږي.

### ۳_ تضمین:

د سند او مثال په توګه شاعر د خپل کلام د تقویې لپاره د مضمون د تام ارتباط په صورت کې د بل چا د نظم یوه ټوټه، نیم بیتی، بیت، یا څوبیتونه په خپل شعر یا نظم کې را وړلو ته تضمین وایي. دا لاندې ډولونه لري: ابداع یا رفوتضمین، استعانه، مصرع تضمین، له تصرف سره تضمین، بې تصرفه تضمین. دلته د ابداع یا د رفوتضمین یو مثال راوړو:

((دا په مخ یې د خط لیکه دو تا راغله))
کـه کعبې لـره مشکینه قبـا راغله

پورته بیت د بیدل هشنغري دی، مګر لومړۍ مسره یې د حمید را اخیستې ده. د حمید د شعر ټول بیت په دې ډول دی:

دا په مخ یې د خط لیکه دوتـا راغله
ګـویـا مـخ لـره دې تـوره بـلا راغله

بېدل ورڅخه لومړۍ مسره تضمین کړې ده.

### ۴_ ترصیع:

ترصیع عربي کلمه ده، په لغت کې د جواهرو ایښودلو ته وایي، په ادبي اصطلاح کې هغه صنعت دی چې شاعر خپل یو بیت په څو برخو وېشي، هره برخه د بلې برخې په مقابل کې

داسې راوړي چې په وزن کې سره برابروي، لکه د رحمان بابا دا لاندې بيت:

په حالت د عاشقانو نظر بويه

په زيارت د شهيدانو ګذر بويه

په دې بيت کې (حالت ـ زيارت) (عاشقانو ـ شهيدانو) او (نظر ـ ګذر) يو د بل په مقابل کې راغلي دي.

## ۵ـ ذوالقوافي:

هغه شعر دی چې له دوو څخه زياتې قافيې ولري او که د قافيو ترمنځ رديفونه هم ولري، نو بيا يې ذوالقوافي مع الحواجب بولي، لکه په دې لاندې بيت کې:

چا د شرف ورکې د ليلا نه جلباب لرې کړ

چا د ژوند سفر کې د حيا نه شباب لرې کړ

په پورته بيت کې ((ور ـ سفر))، ((ليلا ـ حياء)) ((جلباب ـ شباب)) د قافيې کلمې دي او (لرې کړ ـ لرې کړ) يې د رديف په توګه راغلی دی.

دمتن لنډيز:

بديع په لغت کې نوي تازه او حيرانوونکي څيز ته وايي او په ادبي اصطلاح کې هغه علم دی چې د وينا او کلام له ښکلا او هغو صنايعو څخه بحث کوي چې نظم يا نثر ته ښکلا ورکوي.

ادبي صنعتونه په دوه ډوله دي: لفظي صنايع او معنوي صنايع.

لفظي صنايع: هغه دي چې په هغو کې د وينا ښکلا په کلمو پورې اړه ولري، که هغو ته د معنا په خوندي ساتنه بدلون ورکړو، د وينا ښکلا له منځه ځي. د لفظي صنايعو شمېر ډېر دی، ځينې مهم يې دادي: تجنيس او د هغه ډولونه، قلب، ذوالقوافي، سياق الاعداد تضمين، معما، سجع او نور.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله په ډېر غور او دقت سره ولولي.

۲ـ یو یو زده کوونکی دې د ټولګیوالو په وړاندې د متن یوه یوه برخه په لوړ غږ ولولي، ښوونکی دې د اړتیا پر مهال ورسره مرسته وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي، د یوې ډلې زده کوونکي دې له متن څخه یو بیت پر تخته ولیکي او د بلې ډلې زده کوونکی دې پکې هغه موجود ادبي صنعتونه وښيي او لازم توضیحات دې ورکړي.

٤ـ په لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- ادبي فنون څه ته وايي؟
- ادبي فنون څو ښانګې لري؟
- بدیع په لغت او اصطلاح کې څه ته وايي؟
- بدیع علم له کومو ادبي صنعتونو څخه بحث کوي؟
- لفظي صنعتونه تعریف کړئ؟
- د څو مشهورو لفظي صنعتونو نمونه واخلئ؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د درېو لفظي صنعتونو لپاره یو یو نوی مثال او نمونه پیدا او په راتلونکي درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ولولي.

# د بديع علم ـ دويمه برخه معنوي صنعتونه




ـ معنوي صنعتونه څه ته وايي؟

ـ کوم علم له معنوي صنعتونو څخه بحث کوي؟

بديع په لغت کې نوي، تازه او حيرانوونکي څيز ته وايي او په ادبي اصطلاح کې بديع علم د ادبي فنونو يوه ډېره مهمه څانګه ده چې د وينا او کلام له لفظي او معنوي شکلاوو څخه بحث کوي. مخکې مو په يوه لوست کې لفظي صنعتونه در وپېژندل، په دې لوست کې معنوي ادبي صنعتونه چې د بديع د علم يوه مهمه برخه ده، درپېژنو.

بدیع علم د ادبي فنونو له دریو څانګو (بیان، معاني، بدیع) څخه یوه ډېره اړینه او اساسي برخه ده چې د هغې په وسیله د وینا یا کلام ښکلا معلومېږي. د بدیع علم له دوو ډلو ادبي صنعتونو څخه بحث کوي:

لفظي صنعتونه  او معنوي صنعتونه.

لفظي صنعتونه مو د مخه په یوه لوست کې وپېژندل. په دې لوست کې معنوي صنعتونه درپېژندل کېږي.

معنوي صنعتونه هغه ادبي صنعتونه دي چې په هغو کې د وینا یا کلام ښکلا په معنا پورې اړه لري. که کلمې ته د معنا په ساتنه بدلون ورکړو، بیا هم ښکلا پر خپل ځای پاتې کېږي.

د معنوي صنعتونو شمېر زیات دی، د ځینو نومونه یې دادي:

تضاد یا طباق، ایهام، لف و نشر، عکس و تبدیل، عارفانه تجاهل ، التفات، جمع، تفریق، مراعات النظیر، ارسال المثل، تعجب، متحمل الضدین، مبالغه، حسن تعلیل، تنسیق الصفات، استدلال، مخاطبه، هجو، رجوع او داسې نور.

ځینې ډېر مشهور معنوي صنعتونه د مثالونو په ترڅ کې درپېژنو:

## ۱_ طباق:

په یوه کلام یا شعر کې چې متقابل الفاظ، لکه: رڼا او تیاره، شپه او ورځ، ژړا اوخندا، مرګ او ژوند، خوشالي او خپګان، تور او سپین او داسې نور یو ځای سره راوړل شي، د طباق صنعت ورته وایي: د مثال په ډول، د عبدالقادر خان خټک دا لاندې بیت وګورئ:

چې یې تلمه په خندا خندا دیدار ته
اوس یې درومم په ژړا ژړا مزار ته

یا

زه په سرو سترګو ژړا کړم چې ته درومې
ته له ما چې رخصتېږې په خندا ځې

په پورته شعرونو کې د خندا او ژړا کلمو په ذکر سره طباق موجود دی. طباق په درې ډولونو: اسمي، فعلي، ایجابي او سلبي طباق باندې وېشل شوی دی.

## ۲_ مراعات النظیر:

که چېرې په یوه جمله یا د شعر د بیت په یوه مسره کې د کوم شي یادونه وشي او په وروسته جمله یا نیم بیتي کې د هغه یاد شوي شي نور مناسبات او ملایمات وویل شي، نو دغه ډول ښایست ته مراعات النظیر ویل کېږي، لکه د خوږ دل شاعر په دې بیت کې:

د زړه شمعه مې د عشق له غوړو ډکه
ژر پرې لګه د محبوب د دیدن اوره

یا لکه علي خان چې وایي:

د ښایست مرغه د خط په پرو والوت
د عاشق په زړه یوه نرمه هوا راغله

کله چې شاعر په لومړي نیم بیتي کې د شمعې یادونه کړې، نو د هغې مناسباتو او ملایماتو، یعنې اور او غوړو ته هم اشاره کوي، نو په یوه بیت کې د داسې متناسبو الفاظو، چې یو له بل سره تناسب ولري، راوړلو ته د مراعات النظیر ادبي صنعت وایي.
همدارنګه علي خان په پورته بیت کې د مارغه کلمه راوړې ده، نو له هغې سره یې مناسبت: پر، الوت، نرمه هوا چې له الوتلو سره پیدا کېږي، ټول ذکر کړي دي، نو مراعات النظیر صنعت بلل کېږي.

## ۳_ لف او نشر:

که یو شاعر په یوه بیت یا مسره کې ځینې مطالب د اجمال په صورت راوړي او په بله مسره یا بیت کې د هغې هر یو متعلق څه بله معنا راوړي، لف او نشر یې بولي. یا په بله وینا:

که یو شاعر یو ځل څو شیان په کلام کې ذکر کړي او د هغې تعبیر بیا په ترتیب یا وړاندې وروسته بڼه باندې وکړي، لف او نشر یې بولي، لکه دا لاندې بیت:

مخ که دې گلشن دی یا څراغ دی یا سورگل
زه بـانـدې بـورا یـم، یـا پتنگ یـم یـا بلبل

دلته وینو چې شاعر په لومړي نیم بیت کې د (گلشن، څراغ او سورگل) یادونه کړې ده او په دویم نیم بیتي کې یې د هغوی مطابق (بورا، پتنگ او بلبل) یاد کړي دي چې یو له بل سره مناسبت لري. لف او نشر په مرتب او غیر مرتب لف او نشر باندې وېشل کېږي.

د مرتب لف و نشر بېلگه دا ده:

دا څه یار دا څه جانان دا څه اغیار دی
دا څه گل دا څه بلبل دا څه زغن دی

په پورته بیت کې په لومړي نیم بیتي کې یې یار، جانان او اغیار یاد کړي او د هغوی تعبیر په دویم نیم بیتي کې په ترتیب سره: گل، بلبل او زغن باندې شوی دی چې دغه ښایست ته مرتب لف و نشر ویل کېږي.

## ۴_ عکس او تبدیل:

کله چې شاعر د لومړۍ مسرې کلمې په دویمې مسرې کې راوړي او د معنا تضاد ورڅخه رامنځته شي، د عکس او تبدیل ادبي صنعت ورته ویل کېږي، لکه: په دې لاندې بیتونو کې:

مـا پـه سـل کـرتـه یـاد کـړې تـه رانغلې
زه بـه سـل کـرتـه درشـم کـه تـا یـاد کـړم
سـخي کـه لـک ورکـا وده تـه کـک وي
بـخیـل کـه کـک ورکـا وده تـه لـک وي

د پورته بیتونو په لومړي بیت کې د اولې مسرې کلمې په دویمې مسرې کې سره اوښتي

دي او د معنا تضاد يې را منځته کړی دی. سل کرته يا دول، يو کرت نه ورتلل او سل کرته تګ، يو کرت يا دول د صنعت په لحاظ عکس و تبديل دی.

همدارنګه په دويم مثال کې د سخي لک ورکول، کک ګڼل او د بخيل کک ورکول، لک ګڼل سره تضاد لري او له بلې خوا د بيت د لومړۍ مسرۍ کلمې په دويمې مسرۍ کې سره اوښتي او د عکس و تبديل صنعت ورڅخه جوړ شوی دی.

## ۵_ حسن تعليل:

د يوه وصف لپاره د يوه غير حقيقي، مګر لطيف او مناسب سبب چې شاعر د يوه صنعت لپاره داسې علت پيدا کړي چې په اصل حقيقت کې يې سبب نه وي، مګر د لطافت او حسن له کبله يې دغه صنعت ته نسبت کېدای شي، لکه حميد مومند چې وايي:

چې نظر يې د ګلرخ ساقي پر مخ شو
د نرګس له لاسه جام پرېوت نسکور شه

يا:

وغړوه سترګې زلفې لرې د رخسار کړه
ستا ليدو ته رېږدي لمر په پاڼو کې د ګلو

که دې پورته بيت ته وګورو، نو د هغه محبوب ليدنه چې د شرابو جام هم په لاس کې ولري، د نرګس پر ګل دومره اغېز کوي چې خپل جام يې له لاسه پرېوځي او نسکورېږي.

په دويم بيت کې شاعر د يار مخ ليدل د لمر د رېږدېدلو او خوځېدلو علت ګڼلی دی، که څه هم په حقيقت دغه علت نشي کېدلی، خو ډېر ښه لطافت لري.

## ۶_ رجوع:

رجوع په لغت کې بېرته راګرځېدلو ته وايي او په ادبي اصطلاح هغه ادبي صنعت دی چې يو څوک يو مطلب يو ځل څرګند کړي او بيا په وروستی جمله يا نيم بيتي کې د يوه

خاص غرض لپاره خپله کړې خبره باطله کړي او له خپل مطلب څخه وګرځي، لکه:
خوشحال خان خټک چې وايي:

که ښه وايم و چا ته هم يې بد نيسي په زړه کې
يا بخت دی د مغلو يا زما څه عقل کم دی
نه بخت دی د مغلو نه زما څه عقل کم دی
دا کُل واړه پيري ده چې مې کار درهم برهم دی

که دا پورته دوه بيتونه وګورو، وينو چې خوشحال خان خټک يو ځل خپلې کم بختۍ او کم عقلۍ ته اشاره کوي او وروسته بيا له خپل مطلب څخه ګرځي او د هر څه اصلي لامل او علت زړښت او ضعيفي بولي.

## ۷_ عارفانه تجاهل:

کله چې د يوه نزاکت او لطافت لپاره شاعر خپل ځان په يوه شي ناخبره واچوي، په داسې حال کې چې ښه پرې خبر او ورمعلوم وي، په شعر او ادب کې دې ته د عارفانه تجاهل ادبي صنعت ويل کېږي.

لکه علي خان چې وايي:

دا د دلبر مخ دی چې له شاله نيم ليده شي
يا زيړوتی نمر دی چې ليده شی نيم له غره

يا لکه دا بيت:

دا يې خط دی چې پر مخ دی ګرځېدلی
کـه زنـګـيـان دي پـه حــرم کـوي طـواف

په پورته بيت کې معشوقې خپل ښکلی مخ په ښکلي ژېړ شال کې پټ کړی دی، خولړه ښکلې برخه ورڅخه په يوه ګوښه کې ښکاري چې د ژېړ شال عکس ورباندې پرېوتی دی، نو شاعر ځان ناخبره غورځوي اووايي چې زه نه پوهېږم چې دا د مازيګر لمر دی او که زما د محبوب ښکلی مخ.

### ۸_ تلمیح:

تلمح په لغت کې په مالګه کولو ته وايي او په ادبي اصطلاح کې هغه ادبي صنعت دی چې شاعر په خپل شعر کې يوې تاريخي پېښې او حکايت ته اشاره کړې وي.

لکه:

مګر وژاړه فرهاد بيا سيل د زړګو
چې په سرو سترګو راځي له کوهستانه

يا:

د زړه تخت دې ځکه ونيو و ديوانو
چې دې ګوته د سليمان لاړه له لاسه

يا:

که رقيب مې نژدې نه پرېږدي محبوب ته
د يوسف د کميس بوی بس دی يعقوب ته

په لومړي بيت کې د شيرينې عاشق فرهاد، په دويم کې د سليمان عليه السلام نګين او په دريم کې د يوسف عليه السلام او حضرت يعقوب عليه السلام واقعو ته اشاره ده.

د متن لنډيز:

د بديع علم د ادبي فنونو يوه مهمه څانګه ده چې د وينا او کلام له لفظي او معنوي صنعتونو څخه بحث کوي. معنوي صنعتونه هغه دي چې په هغو کې د وينا يا کلام ښکلا په معنا پورې اړه لري. که کلمې ته د معنا په حفظ بدلون ورکړو، بيا هم ښکلا پر خپل ځای پاتې کېږي. د معنوي صنعتونو شمېر زيات دی. ځينې ډېر مشهور يې دادي: تضاد يا طباق، ايهام، لف او نشر، مبالغه، تنسيق الصفات، استدلال، مخاطبه، هجو، استخدام، رجوع او نور.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي.

۲ـ ښوونکی دې د متن ستونزمنې کلمې پر زده کوونکو او ډېرې ستونزمنې دې په خپله معنا کړي.

۳ـ زده کوونکي دې د متن یوه یوه برخه ولولي، ښوونکی دې د اړتیا پر مهال مرسته ورسره وکړي.

٤ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، د یوې ډلې یو زده کوونکی دې له متن څخه یو بیت پر تختې ولیکي او د بلې ډلې زده کوونکی دې په هغه کې موجود ادبي صنعت معلوم کړي او لازمي څرګندونې دې وکړي. دا لړۍ دې په دواړو ډلو تطبیق شي.

۵ـ په دې لاندې پوښتنو د لوست د زده کړې ارزونه کېږي:

- ادبي فنون څه ته وايي؟
- ادبي فنون کومې څانګې لري؟
- بدیع په لغت او ادبي اصطلاح کې څه ته وايي؟
- د بدیع علم له کومو ادبي صنعتونو څخه بحث کوي؟
- معنوي صنعتونه تعریف کړئ.
- د پنځو معنوي صنعتونو نومونه واخلئ.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د خپلې خوښې د معنوي ادبي صنعتونو لپاره له متن پرته نور مثالونه پیدا او په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ووايي.

# خیرالبیان




ــ تاسې د پښتو په پخوانیو نثري کتابونو کې کوم کتابونه پېژنئ؟

ــ تاسې د خیرالبیان په نوم د کوم کتاب نوم اورېدلی؟

ــ تاسې بایزید روښان پېژنئ؟

د پښتو ادب منځنی یا کلاسیکه دوره د پښتو ادب په تاریخ کې یوه ځلانده ادبي دوره ده چې ډېر پیاوړي ادبي غورځنگونه پکې رامنځته شوي دي. ډېر علمي او فرهنگي شخصیتونه په دغې دورې کې را ځلېدلي دي. یو له دغو نومیالیو او فرهنگیالیو شخصیتونو څخه بایزید روښان دی. روښان د پښتو، دري، عربي او هندي ژبو په نظم او نثر کې زیات شمېر آثار لیکلي دي. په پښتو آثارو کې یې یو (خیرالبیان) نومېږي. دلته یې په دې لوست کې درپېژنو.

بایزید روښان د قاضي عبدالله زوی و، په قوم اورمړ پښتون و. کورنی یې له وزیرستان څخه هندوستان ته تللې وه. روښان هلته په ۹۲۶ هجري قمري کال سترګې نړۍ ته پرانیستې وې. نوموړي د علومو له زده کړې وروسته یوه د طریقت او عرفان لاره رامنځته کړه. ډېر مریدان او پلویان یې وموندل او وروسته دغه روحاني او تصوفي غورځنګ ملي او سیاسي بڼه خپله کړه. بایزید د عرفان او تصوف تر څنګ د وخت د مغولي واکمنۍ په وړاندې ملي مبارزه پیل کړه او د دغې مبارزې په بهیر کې په (۹۸۵ هـ.ق.) کال کې وفات شو.

بایزید روښان (۹۲۶ ــ ۹۸۵هـ.ق.) زموږ د هېواد پیاوړی علمي ــ فرهنګي او سیاسي شخصیت و. نوموړي د خپلې علمي، عرفاني لارې د تبلیغ او د خپلو پیروانو د لارښوونې لپاره په پښتو، دري، عربي او هندي ژبو ډېر آثار لیکلي دي چې په هغو کې یو ډېر مشهور اثر ((خیرالبیان)) نومېږي. سره له دې چې د بایزید روښان د دې اثر په هکله یا دونې د پښتو په پخوانیو منظومو او منثورو آثارو او همدارنګه د بهرنیو ختیځپوهانو په لیکنو کې شوې وې، خو په خپله دغه کتاب زموږ په لاس کې نه و. له ښه مرغه چې د دغه ارزښتناک اثر یوه قلمي نسخه بهرنیو ختیځپوهانو له ځان سره اروپا ته وړې او د جرمني د تبونګین پوهنتون د کتابتون د خطي نسخو په مجموعه کې خوندي وه. د پېښور د پښتو اکېډیمي مشر مولانا عبدالقادر دا نسخه په ډېرو کړاوونو په نوموړي کتابتون کې تر لاسه کړه، د هغې یوه کاپي یې له ځان سره پښتونخوا ته یوړه او د پښتو اکېډیمي له خوا د مولانا عبدالقادر د پېژندګلوۍ، څرګندونو او د مولانا عبدالقدوس قاسمي له سریزې او تعلیقاتو سره په (۴۳۱) مخونو کې خپره شوه. همدارنګه د همدې قلمي نسخې یوه عکسي کاپي عبدالرؤوف بېنوا ترلاسه کړې وه. د هغې له مخې په افسیټ او عکسي بڼه د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي له خوا په (۱۳۵۳ لمریز) کال چاپ او خپره شوه. د خیرالبیان د تألیف کال نه دی معلوم. هغه قلمي نسخه چې په کابل او پېښور کې ورڅخه د خیرالبیان کتاب خپور شوی، ټول (۳۳۴) مخونه لري. دغه نسخه په (۱۰۶۱ هجري قمري) کال خطاطي شوې ده. د خیرالبیان دا چاپ شوې نسخه په څلورو (پښتو، دري، عربي او هندي) ژبو ده چې ډېره برخه یې پښتو،

په ځينو ځايونو کې په دري ژبه څرګندونې او په عربي ژبه د قرآن آيتونه، نبوي حديثونه، ځينې عربي مقولې او په ځينو برخو کې يې د هندي ژبې په پنجابي لهجه ځينې څرګندونې راغلې دي.

په دې وروستيو کلونو کې د هندوستان د حيدر آباد د دکن په سالار جنګ موزيم کې د خيرالبيان يوه بله بشپړه قلمي نسخه وموندل شوه. دغه نسخه په (۱۰۷۹ هجري قمري) کال کې خطاطي شوې او ټول مطالب په څلور واړو ژبو په برابره اندازه پکې راغلي دي. په څلورو ژبو د خيرالبيان ليکلو په هکله په خپله پير روښان داسې وايي: ((ګوره کړې مې دی خيرالبيان په څلور ژبې موافق له قرآن، پکې دی بيان د رښتيا، دروغ، د حلال او حرام، د کړه نه کړه په هر مقام، په تا دې وي اعلان.)) د خيرالبيان پښتو برخه په مسجع او قافيه لرونکي نثر ليکل شوې ده. استاد پوهاند عبدالشکور رشاد په خپلو څېړنو کې د هغې ځينې برخې نظم بللې دي. مسجع نثر په لسمه هجری پېړۍ کې بايزيد روښان په پښتو کې دود کړی دی. بايزيد روښان په مسجع نثر د خيرالبيان کتاب وليکه. کله چې اخوند درويزه د بايزيد روښان مخالفت ته راپورته شو، د خيرالبيان په مقابل کې يې خپل کتاب (مخزن الاسلام) هم د بايزيد روښان په څېر په مسجع نثر وليکه. بيا نورو ليکوالو هم د دغه مسجع نثر ليکنې لار تعقيب کړه او نژدې دوه سوه کاله يې دوام موندلی دی.

خيرالبيان ټول څلوېښت بابونه لري چې بېلا بېل ديني، عرفاني او فقهي مسايل پکې تر (۱۲۱) لويو وړو سرليکونو لاندې راغلي دي. د دې کتاب د ځينو مطالبو سر ليکونه دادي:

د لمانځه د فرايضو، واجباتو او سنتونو بيان، د غسل بيان، د تيمم بيان، د اوداسه بيان، د نجاست د مکروهاتو، اوامرو او نواهيو بيانونه، د روژې، زکات او حج بيانونه، د نفس، ژوند، مرګ، عذاب، دګور، ايمان، ذکر خفي، همدارنګه د روښاني تصوفي عرفاني لارې د اتو مقامونو، لکه: شريعت، طريقت، حقيقت، معرفت، وصلت، وحدت او سکونت په هکله بحثونه پکې راغلي دي.

د خیرالبیان زیات ارزښت او اهمیت په دې کې دی چې دا د پښتو ژبې لومړنی زوړ بشپړ تر لاسه شوی کتاب دی چې په لسمه هجري پېړۍ کې لیکل شوی دی. د زمانې له پېښو او توپانونو خوندي پاتې دی. اوس موږ د دې کتاب قلمي او چاپي نسخې په لاس کې لرو او په پښتو ژبه یې د مطالبو له لوستلو ګټه اخلو. بله دا چې دا کتاب موږ ته د روښان تصوفي او عرفاني لاره راپېژني. موږ د دغه نومیالي علمي او فرهنګي شخصیت له افکارو او نظریاتو سره آشنا کوي او راته د نوموړي علمي او ادبي مقام راجوتوي.

دلته د خیرالبیان د متن پیلامې یوه بېلګه لولو:

بسم الله الرحمن الرحیم

((په نامه د خدای چې بخشاینده دی مهربان. معنا: په نامه د خدای ﷻ چې په خدایۍ دی عیان، آغاز د کتاب او

بایزیده! زما ډېر ستر صفت وکښه. خوښي مې پیدا شي چې زما ډېر ستر صفت وایي آدمیان. ګوره! زما تسبیح وایي چې زما په زمکه دي (یا) په آسمان. نشته هیڅ بیرون چې زما تسبیح وایي، ته باور وکړه په دا بیان)).

(۲)

(( نبي ویلي دي علیه السلام:

مرګ به ورشي و سړي ته ناګهان، نشته د سړي په دنیا کې تل د تله مقام یا هسې ګڼې چې لویه عزیزي په نښته ده، د قهر په راتلل ده، د تېغ په وهل ده چې وژني آدمیان. ګوره دا هسې چار ده حرام)).

د متن لنډيز:

خیرالبیان د بایزید روښان له مشهورو آثارو څخه دی چې د خپلې عرفاني او تصوفي لارې د تبلیغ او د خپلو مریدانو او پیروانو د لارښوونې لپاره یې لیکلی دی. د دې کتاب قلمي نسخې تر لاسه شوې او د هغو له مخې په کابل او پېښور کې چاپ شوی دی. د دې کتاب ارزښت او اهمیت په دې کې دی چې د پښتو لومړنی بشپړ پخوانی ترلاسه شوی کتاب دی چې په لسمه هجري پېړۍ کې لیکل شوی، د زماني له حوادثو خوندي پاتې او تر موږ رارسېدلی دی. دا کتاب موږ د روښان پیرله افکارو او نظریاتو سره آشنا کوي او د نوموړي علمي، عرفاني او ادبي مقام موږ ته راښيي.

## فعالیتونه

۱ــ ښوونکی دې متن ولولي، ستونزمنې کلمې او مفاهیم دې زده کوونکو ته توضیح او د بایزید روښان د پېژندنې په اړه دې لازمې څرګندونې وکړي.

۲ــ زده کوونکي دې وګومارل شي چې یو ځل متن په پوره غور او دقت په چوپه خوله ولولي.

۳ــ زده کوونکي دې په وار سره د متن یوه یوه برخه د ټولګیوالو په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د اړتیا پر مهال د سمون لپاره مرسته وکړي.

٤ــ زده کوونکي دې په درېو ډلو ووېشل شي او دې ته دې وګومارل شي چې یوه ډله په متن کې ((پښتو)) کلمې، بله ډله ((عربي)) کلمې او دریمه ډله ((دري)) کلمې په نښه کړي. د هرې ډلې استازی دې په نښه کړې کلمې پر تختې په جلا ډول ولیکي.

۵ـ دوه دوه زده کوونکي دې په نوبت سره د تختې مخې ته ورشي، يو تن دې يوه کلمه معنا کړي او بل دې هغه په مناسبه جمله کې وکاروي. دا لړۍ دې په ټولګي کې تر پايه تعقيب شي.

٦ ـ زده کوونکي دې په نوبت سره په ټولګي کې د متن مفهوم په خپلو الفاظو ووايي. ښوونکی دې د اړتيا پر مهال له هغوی سره مرسته وکړي.

۷ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست ارزونه وشي:

- خير البيان چا ليکلی دی؟
- خيرالبيان څه ډول کتاب دی؟
- په خيرالبيان کې له پښتو پرته په نورو کومو ژبو کې مطالب راغلي دي؟
- خيرالبيان په کومو ځايونو کې چا چاپ کړی دی؟
- د خيرالبيان د متن مفهوم په خپلو الفاظو ووایاست؟
- په خيرالبيان کې کوم مسايل راغلي دي؟
- خيرالبيان په کوم ډول نثر ليکل شوی دی؟
- بايزيد روښان څوک و؟




زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د پښتو د نظم يا نثر کوم پخوانی کتاب تر لاسه او د هغه په هکله دې لنډ معلومات وليکي. د پښتو لوست په راتلونکي ساعت کې دې هغه د ټولګيوالو په وړاندې ولولي.



# عبدالرحمان پژواک



ـ په معاصرو شاعرانو او لیکوالو کې څوک پېژنئ؟

ـ داسې شخصیتونه درمعلوم دي چې په پښتو او دري دواړو ژبو یې ادبي آثار لیکلي دي؟

زموږ د هېواد په معاصره دوره کې ځینې داسې لیکوال شته چې شخصیت یې ګڼ اړخونه لري. د علم او فرهنګ په ډګر کې وتلې او منلې څېرې دي. منظوم او منثور ادبي آثار یې لیکلي دي او هم یې کلونه د هېواد په سیاسي چارو کې فعاله ونډه لرلې ده. په دغسې شخصیتونو کې یو هم عبدالرحمان پژواک و. نوموړي په پښتو او دري ژبو کې په لسګونه منظوم او منثور آثار لیکلي دي. دلته یې په دې لوست کې درپېژنو.

عبدالرحمان پژواک د قاضي عبدالله زوی، د ننگرهار ولایت د سره رود د ولسوالۍ اوسېدونکی و. پژواک په (۱۲۹۷) لمریز کال، هغه مهال چې پلار یې د غزني په ولایت کې د قضاء دنده درلوده، په دغه ښار کې سترگې نړۍ ته وغړولې. کله چې را لوی شو، لومړنۍ مروجې زده کړې یې په خپله علم پاله کورنۍ کې وکړې، بیا د ننگرهار د سره رود د مطلع دانش په ښوونځي کې شامل شو. څه موده یې د خوږ یانیو په ښوونځي او د کابل ښار د اندرابیو په ښوونځي کې زده کړې وکړې. ثانوي زده کړې یې په (۱۳۱٤ لمریز) کال د کابل په حبیبې ښوونځي کې پای ته ورسولې. د لوړو زده کړو لپاره د کابل په طب پوهنځي کې شامل شو. دوه کاله یې دغلته د روغتیایي علومو زده کړه وکړه. د پلار له وفات نه وروسته دې ته اړ شو چې لوړې زده کړې نیمگړې پرېږدي او ماموریت ته مخه کړي. د استاد پژواک لومړی ماموریت په (۱۳۱٦) لمریز کال د کابل ادبي انجمن د تاریخ په څانگه کې د انگلیسي ژبې د ژباړونکي په توگه پیل شو. کله چې پښتو ټولنه جوړه شوه، په هغه کې یې خپله دنده تر سره کوله او په (۱۳۲۰ لمریز) کال د دغې لوړې علمي او فرهنگي ادارې مشر شو.

سربېره پر دغې دندې یې د مطبوعاتو د مستقل ریاست د خپرونو د دویمې څانگې د مدیر، د مطبوعاتو د لوی مدیر او د باختر آژانس د لوی مدیر په توگه سترې فرهنگي دندې هم تر سره کړې دي.

عبدالرحمان پژواک د هغه لوړ علمي، سیاسي استعداد، وړتیا او ذوق له مخې چې له سیاسي مسایلو سره یې درلود، په (۱۳۲۵) لمریز کال د بهرنیو چارو په وزارت کې د اطلاعاتو لوی مدیر شو. وروسته په لندن کې د افغانستان د سفارت دوهم سکرتر او مطبوعاتي آتشه شو. وروسته په واشنگټن کې د افغانستان د لوی سفارت مطبوعاتي استازی، سفیر او بلاخره دوه لسیزې په ملگرو ملتونو کې د افغانستان دایمي استازی او بیا د څه وخت له پاره د ملگرو ملتونو د عمومي غونډې مشري هم ور ترغاړه شوه. په هندوستان کې یې

د افغانستان د لوی سفارت دنده هم تر سره کړې ده. عبدالرحمان پژواک کلونه خپل هېواد ته په سیاسي ډګر کې د یادونې او ستاینې وړ خدمتونه وکړل. نوموړی که په سیاسي ډګر کې په خدمت هم بوخت و، له ادب او فرهنګ سره یې خپله مینه پالله او په دغه موده کې یې هم ډېر آثار لیکلي دي. په هېواد کی د (۱۳۵۷) لمریز کال له پېښو وروسته، استاد پژواک رسمي دولتي دنده پرېښوده او څه موده وروسته له هېواد نه ووت.

په (۱۳۷۰ لمریز) کال چې ناروغ او بوډا شوی و، پېښور ته ولاړ او په (۱۳۷٤ لمریز) کال کې د جوزا په ۱۸ هملته مړ شو، جنازه یې هېواد ته راوړل شوه او په خپل پلرني ټاټوبي، د ننګرهار په سره رود کې خاورو ته وسپارل شو.

عبدالرحمن پژواک سربېره پردې چې د هېواد نومیالی سیاسي شخصیت و، د پښتو او دري ژبو پیاوړی لیکوال او شاعر هم و. د هېواد او نړۍ په مطبوعاتو کې په زیات شمېر خپرو شوو مقالو سربېره یې شاوخوا شل لیکلي او ژباړلي منظوم او منثور آثار په پښتو او دري ژبو چاپ شوي او ځینې ناچاپ آثار هم لري. دلته یې د ځینو چاپ شوو آثارو نومونه اخلو:

کلمه داره روپۍ (پښتو منظومه ډرامه)، افسانه های مردم کابل (لنډې کیسې)، افغانستان کهن، عروج بارکزیها، پیشوا، باغبان (د ټاګور د اثر ژباړه)، زن از نګاه محمدﷺ، حدیث خون، بانوی بلخ، میهن من او نور.

د عبدالرحمان پژواک پښتو شعرونه له دري شعرونو سره یو ځای په بېلو بېلو مجموعو کې چاپ شوي دي. همدارنګه یې کیسې او ډرامې هم لیکلي دي. کلمه داره روپۍ د پژواک لیکلې پښتو ډرامه ده چې په آزاد شعر یې لیکلې او په (۱۳۳۷ لمریز) کال پښتو ټولنې چاپ کړې ده.

دلته يې د پښتو شعر يوه بېلګه لولو:

هم هغسې په خنداکې هنر نشته
په ژړا کې هم له سره اثر نشته
که دې غاړه لکه غر ونيسې هسکه
په نيلي تېغ د افق کې جوهر نشته
د ژوندون نه به کوم خوب پرېشانه، نه وي
دا دنيا ده ناراحته بستر نشته
دا چې خاورې شوم د مينې لار کې ښه دی
خو د چا زما په خاورې ګذر نشته
دا خبر به څوك زما نه يار ته يوسي
چې بېلتون کې مې له ځانه خبر نشته
زه پژواك يم په پېچومو کې لوی شوی
دا چې چوپ يم دلته غر او کمر نشته

د متن لنډيز:

عبدالرحمان پژواك د پښتو او دري ژبو پياوړی ليکوال، شاعر او د هېواد نوميالی سياستوال و. نوموړی په (١٢٩٧) لمريز کال کې زېږېدلی او په (١٣٧٤ لمريز) کال کې د هجرت په چاپېريال پېښور کې وفات شو. جنازه يې هېواد ته راوړل شوې او د ننګرهار په سره رود کې خاورو ته سپارل شوی دی. عبدالرحمان پژواك په پښتو او دري ژبو د نظم او نثر ډېر علمي، ادبي، او سياسي کتابونه ليکلي او کلونه کلونه يې د هېواد په سياسي ډګر کې په بهرنيو هېوادونو کې د افغانستان د لوی سفير او نژدې دوې لسيزې په ملګرو ملتونو کې د افغانستان دايمي استازی و. نوموړي له دغې لارې هېواد ته ستر سياسي او ملي خدمتونه کړي دي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله په غور ولولي، ستونزمنې کلمې او مفاهیم دې له ښوونکي څخه وپوښتي. ښوونکی دې هغوی ته ځوابونه ووایي.

۲ ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د متن لړه لړه برخه د ټولګیوالو په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د اړتیا پر مهال له هغوی سره په سمون کې مرسته وکړي.

۳ ـ زده کوونکي دې په ټولګي کې د پژواك د علمي، ادبي او سیاسي شخصیت په اړه خبرې وکړي.

٤ ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، یوه ډله دې په متن کې ((مفرد نومونه)) او بله ډله دې ((جمع نومونه)) په نښه کړي. د ډلو استازي دې هغه جلا جلا پر تختې ولیکي.

مفرد نوم: هغه نوم دې چې یو څیز نوموي، لکه: غر، څمکه، ګل او ځنګل.
جمع نوم: هغه نوم دی چې له یوه څخه ډېر څیزونه یا شیان نوموي، لکه: غرونه، ګلونه، ځنګلونه او نور.

۵ـ زده کوونکي دې تختې ته وروبلل شي چې هغه مفرد او جمع نومونه یو یو په مناسبو جملو کې وکاروي.

٦ ـ زده کوونکي دې په نوبت د ټولګي مخې ته ورشي او د لوست عمومي مفهوم دې په خپلو الفاظو کې ټولګیوالو ته ووایي.

۷_ ښوونکی دې د عبدالرحمان پژواک د شعر دا لاندې بيتونه پر تخته وليکي، زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې د هغو مفهوم، تشريح او توضيح په خپلو کتابچو کې وليکي:

د ژوند نه به کوم خوب پرېشانه نه وي
دا دنيا ده ناراحته بستر نشته
دا خبر به څوک زما نه يار ته يوسي
چې بېلتون کې مې له ځانه خبر نشته

۸_ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- عبدالرحمن پژواک د چا زوی او په کوم کال چېرې زېږېدلی و؟
- عبدالرحمن پژواک کومې فرهنګي دندې تر سره کړې دي؟
- پژواک کومې سياسي دندې سرته رسولې دي؟
- پژواک په کوم کال مړ او چېرې خاورو ته وسپارل شو؟
- پژواک کوم کتابونه ليکلي يا ژباړلي دي؟
- (کلمه داره روپی) د پژواک څه ډول اثر دی؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د کوم بل پښتون فرهنګي يا سياسي شخصيت په هکله لنډ معلومات وليکي او د پښتو لوست په راتلونکي ساعت کې دې هغه د ټولګيوالو په وړاندې ولولي.



# مېرمن حميده

ـ د پښتو په اوسنيو ښځينه شاعرانو کې څوك پېژنئ؟

ـ د کومې پښتنې ښځينه شاعرې شعرونه او آثار مولوستي دي؟

د پښتو په معاصرې ادبي دورې کې موږ په خپل ادبي فرهنگي بهير کې ډېرې پياوړې ليکوالې اوشاعرانې لرو. دغو ليکوالو او شاعرانو د خپلو منظومو او منثورو ادبي آثارو په پنځولو او ليکلو د پښتو ادب د ودې او پرمختيا لپاره ارزښتمن کارونه کړي دي.

په دغو نوميالیو ادبي او فرهنگي مېرمنو کې يوه هم نوميالۍ شاعره او ليکواله مېرمن حميده وه چې په دې لوست کې يې درپېژنو.

مېرمن حميده چې يوه اديبه، عالمه او فاضله مېرمن وه، د ارواښاد حضرت شاه چې د

تیر ګړیو پاچاصاحب په نوم مشهور و، لور وه. په (۱۲۹۷ لمریز) کال یې د کونړ ولایت د شینکوړک د سیمې په یوې عالمې او روحاني کورنۍ کې سترګې نړۍ ته غړولې وې.

حمیدې خپلې مروجې زده کړې د خپلې کورنۍ له مشرانو او استادانو څخه تر سره کړې وې، له علم او ادب سره د زیاتې مینې او علاقې او د خپلې کورنۍ د علمي او فرهنګي چاپېریال له امله یې د ادبي او دیني علومو مطالعې ته دوام ورکړ. حمیده د علم او ادب لوړو پوړیو ته ورسېده، له کمال او فضیلت څخه برخمنه شوه.

مېرمن حمیدې له کوچنیوالي څخه په شعر ویلو پیل کړی و. ورور یې سید شمس الدین مجروح پیاوړی علمي او فرهنګي شخصیت و. هغه د دې مېرمنې په روزنه کې پوره ونډه لرله. حمیدې به لیکنې کولې او له شعر او ادب سره یې مینه د زړه په وینه پالله. له هماغه لومړیو وختونو څخه یې شعرونه د هېواد په خپرونو کې خپرېدل.

په شعرونو او نثري لیکنو کې یې د سپېڅلې اسلامي عقیدې، افغاني پت، عزت، غیرت او هېوادپالنې ملي روحیه څرګندېږي. همدارنګه یې اخلاقي مسایل او د افغاني مېرمنو حقونه او ټولنیزې ستونزې په ډېره ژوره توګه د شعر او ادب په خوږه او رنګینه ژبه په زړه پورې بڼه بیان کړي دي.

نوموړې د خپل ماما له زوی عبدالغفورخان سره چې یو نظامي منصبدار و، واده کړی و او د ګډ ژوند ثمره یې څو اولادونه دي.

دغې نومیالۍ مېرمنې، سره له دې چې په ځوانۍ کې د زړه په ناروغۍ اخته وه او له دې امله یې له کړاوه ډک ژوند درلود، خو بیا هم د علم، ادب ډېره لېواله او مینه واله وه. هغې د هغه وخت د مشهورو پښتو لیکوالو: ګل پاچا الفت، قیام الدین خادم، پوهاند رښتین او نورو ادبي آثار مطالعه کول او خپلو منظومو او منثورو لیکنو ته یې په پوره ذوق دوام ورکاوه. همدغه یې د ژوند لویه بوختیاوه.

دغې نومیالۍ مېرمنې د وریښښې ناورغۍ له امله د (۱۳۳۹ لمریز) کال د وږي میاشتې په (۱۵مه) نېټه له ژونده سترګې پټې کړې. د کونړ په شینکوړک کلي کې خاورو ته سپارل شوې ده.

د مېرمن حمیدې د نظم او نثر کوم ځانګړی کتاب نه دی چاپ شوی، خو ډېر شعرونه

او لیکنې یې د هېواد په  مطبوعاتو، په ځانګړې توګه د ننګرهار په ورځپاڼه او کابل مجله کې خوندي دي چې هغه موږ ته د نوموړې د لوړې شاعرۍ اولیکوالۍ څرګندويي کوي.

د شعر بېلګه:

## اې زما کمه نصیبه!

ماویل زړه به مې خالي شي لږ له غمه
دواړه سترګې به مې وچې شي له نمه
د ښادمنو په ټولګي به شمه یاده
زمانه به را سره ځي په لار سمه
همېشه به مې خندا وي غم به نه وي
نه به ځان سره ژړېږم لکه شمه
په مراد به مې د زړه هره آرزووي
بېګانه به یم دنیا له لویه غمه
نور د صبر په نغمه په زړه للو کړم
زمانې نه مې د سود نشي څه تمه
شپه د هجر شوه اوږده د خدای دپاره
ښکلی مخ دې راښکاره که صبحدمه
په نسیم د اوسیلو به دې راوېښ کړم
ای زما په خوب بیده نصیبه کمه!

د متن لنډیز:

مېرمن حمیده د پښتو ژبې معاصره لیکواله او شاعره وه. نوموړې په (۱۲۹۷) لمریز کال د کونړ ولایت په یوه عالمه، فاضله روحاني کورنۍ کې زېږېدلې او را لویه شوې وه. زده کړې یې د خپلې کورنۍ له استادانو څخه وکړې او د خپل ځانګړي ذوق او علاقې له مخې یې د دیني او ادبي علومو مطالعې ته دوام ورکړی و. شاعري او لیکوالي یې د ځوانۍ له لومړیو څخه پیل کړې او د پوخوالي پوړ ته یې رسولې او په ادبي کړیو کې له لوړ نوم او شهرت څخه برخمنه شوې وه. په (۱۳۳۹) لمریز کال په کابل کې وفات شوې ده. د شعرونو یا نثرونو ځانګړي کتابونه یې نه دي چاپ شوي، خو د وخت په موقوتو خپرونو (مجلو او اخبارونو)، په ځانګړې توګه ننګرهار ورځپاڼه او کابل مجله کې یې ډېر شعرونه چاپ شوي دي چې د نوموړې د غوره شاعرۍ او لیکوالۍ څرګندويي کوي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي، ستونزمنې کلمې او مفاهیم دې په نښه کړي.

۲ـ ښوونکي دې زده کوونکو ته ستونزمنې کلمې، مفاهیم پر هغو او یا په خپله معنا او پر تخته ولیکي.

۳ـ زده کوونکي دې په نوبت سره تختې ته وروبلل شي چې هغه معنا کړي او لغتونه په مناسبو جملو کې وکاروي.

٤ـ ښوونکی دې زده کوونکي یو یو د ټولګي مخې ته راوبولي چې د متن مفهوم په خپلو الفاظو نورو ټولګیوالو ته ووایي.

٥ـ زده کوونکي دې وګومارل شي چې یو ځل بیا متن له ځان سره په غور او دقت ولولي او په هغه کې صفتونه په نښه کړي.

٦ـ زده کوونکي دې په متن کې په نښه کړي صفتونه ښوونکي ته ووايي. ښوونکی دې د هغو يو توحيد شوی لست پر تختې وليکي.

صفت:

صفت يا ستاينوم په خپلواك ډول څه نه نوموي، خو د يوه حالت څرنګوالی ښيي. يعنې صفت هغه کلمه ده چې د نوم څرنګوالی روښانوي، لکه: روغ، ناروغ، ښه، بد، ښکلی، بدرنګ، پياوړی، کمزوری اونور.

٧ـ زده کوونکي دې په نوبت سره تختې ته وروبلل شي چې هغه صفتونه په مناسبو جملو کې وکاروي.

٨ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د متن يو يو پراګراف د نورو ټولګيوالو په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د اړتيا په وخت کې ورسره مرسته وکړي.

٩ـ ښوونکی دې د مېرمن حميدې د شعر دا درې بيتونه پر تختې وليکي او له زده کوونکو دې وغواړي چې د هغو عمومي مفهوم په خپلو کتابچو کې وليکي:

ما ويل زړه به مې خالي شي لږ له غمه

دواړه سترګې به مې وچې شي له نمه

د ښاد منو په ټولګي به شمه ياده

زمانه به راسره څي په لار سمه

همېشه به مې خندا وي غم به نه وي

نه به ځان سره ژړېږم لکه شمه

۱۰ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- مېرمن حمیده د چا لور، په کوم کال چېرې زېږېدلې وه؟
- مېرمن حمیدې خپلې زده کړې چېرې او له چانه کړې وې؟
- مېرمن حمېدې د خپل مهال د کومو لیکوالو او شاعرانو آثار مطالعه کول؟
- د مېرمن حمیدې د نظم او نثر بېلګې چېرې خپرې شوې دي؟
- د مېرمن حمیدې د شعرونو ټولګه چاپ شوې ده؟
- مېرمن حمیده په کوم کال زېږېدلې او په کوم کال مړه شوې ده؟
- مېرمن حمیده څه ډول مېرمن وه؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپله خوښه د کومې بلې اوسنۍ یا پخوانۍ پښتو شاعرې یا لیکوالې لنډ ژوندلیک ولیکي او په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ولولي.

د ریـا د دیـنـداری نـه مـې تـوبـه ده
مسلمان زړه ازاری نـه مـې توبه ده
یو نیالګی د مینې ږدې بل یې بېخ کاږي
د دې پټې بېخ کنی نـه مـې توبه ده
((مېرمن سایره))

# امیر حمزه شینواری



ـ د پښتو په اوسنیو شاعرانو او لیکوالو کې څوک پېژنئ؟

ـ د کومو اوسنیو شاعرانو د نظم او نثر کتابونه مولوستي دي؟

د پښتو ادب په معاصرې ادبي دورې کې ډېر پیاوړي علمي او فرهنګي شخصیتونه لرو. هغوی د منظومو او منثورو علمي او ادبي کتابونو په لیکلو علم او فرهنګ ته زیات خدمتونه کړي دي. د غو فرهنګي شخصیتونو د پښتو معاصر ادب په وده او پرمختګ کې ارزښتمنه ونډه لرلې ده.

یو له دغو نومیالیو ادیبانو، علمي او فرهنګي شخصیتونو څخه امیر حمزه شینواری دی چې په دې لوست کې یې درپېژنو.

امیر حمزه خان شینواری د ملک باز میرخان زوی، پر (۱۹۰۷) میلادي کال د پښتونخوا د خیبر د لواړګي په سیمې کې يې سترګې نړۍ ته پرانیستې وې. د پنځو کلونو په عمر يې د لواړګي په مدرسه کې د دودیزو علومو په زده کړه پيل وکړ. بیا وروسته يې د پېښور په اسلامیه کالج کې د عصري او دیني علومو زده کړه پيل کړه او تر لسم ټولګي يې هلته خپلو زده کړو ته دوام ورکړ. په لسم ټولګي کې يې زده کړې نیمګړې پرېښودې، رسمي ماموریت يې پیل کړ. څه موده يې د پېښور د پاسپورټ په دفتر کې دنده درلوده. بیا له هغه ځایه د ریلوې (اورګاډي) اداري ته لاړ. څو کاله يې هلته دنده تر سره کړه. د ماموریت په ټوله موده کې يې خپلو علمي او ادبي مطالعاتو ته دوام ورکړ او د پیاوړي علمي، فرهنګي شخصیت خاوند شو. له شعر او شاعرۍ سره يې له کوچینوالي نه ډېره مینه لرله. په لومړیو کې يې په اردو ژبه شعرونه ویل او د ده د خپلې وینا له مخې، د ښوونځي له پنځم ټولګي څخه يې د شعر په ویلو پیل کړی دی. نوموړي به په ډېره مینه خپل دغه ذوق پاله. کله چې پر (۱۹۳۰ میلادي) کال يې پلار مړ شو، د لواړګي له سیمې څخه پېښور ښار ته لاړ. په همدغو وختونو کې يې له عرفان او تصوف سره ډېره مینه پیدا شوه. د پېښور د نومیالي روحاني شخصیت سید ستارشاه پاچا ارادتمند شو. د خپل پیر په سپارښتنه او لارښوونه يې پښتو شاعري او لیکوالي پیل کړه. ډېر ژر د خپل لوړ ادبي ذوق او پیاوړي استعداد په برکت د پښتونخوا په ادبي ټولنو او فرهنګي کړیو کې د لوړ نوم او شهرت خاوند شو. نوموړي خپل فرهنګي خدمتونه د پښتونخوا د نوښار له پښتو ادبي جرګې څخه پیل کړل. وروسته، کله چې په پېښور کې ((پښتو بزم ادب)) ادبي ټولنه جوړه شوه، حمزه شینواری يې مرستیال او بیا د همدې ټولنې مشر شو. په همدې وختونو کې يې د (رڼا) په نامه یوه ادبي مجله هم خپروله او ترخنګ يې د رحمان ادبي جرګې غړیتوب هم درلود. کله چې پر (۱۹۵۰ میلادي) کال په پېښور کې ((اولسي ادبي جرګه)) جوړه شوه، ((بزم ادب)) ادبي ټولنه هم ورسره یو ځای شوه، حمزه شینواری د دې ادبي جرګې په مشرانو کې و. نوموړي له دغې لارې د ځوانو لیکوالو په روزنه کې ارزښتمنه ونډه تر سره کړه. حمزه شینواری په شعر کې د لوړ استعداد او وړتیا له مخې په ادبي ټولنو کې د ((پښتو غزل بابا)) په لقب ویاړل شوی دی. حمزه شینواری په علمي

او ادبي نثر ليکنې کې هم د پياوړي استعداد خاوند و. ډېرې نثري علمي ادبي ليکنې، لنډې کيسې، ډرامې، طنزونه، تکلونه، سفرنامې، ادبي راپورتاژونه او د منثور ادب نور ډېر ډولونه يې ليکلي دي. د حمزه شينواري د منظوم ادب بېلا بېل ژانرونه هم د وخت په راډيويي او چاپي خپرونو (مجلو او اخبارونو) کې خپاره شوي دي. د پښتو لومړنی فلم د ده د ليکلې کيسې ((ليلی او مجنون)) له مخې پر (۱۹٤۱ ميلادي) د هندوستان په ممبيي کې جوړ او نندارې ته وړاندې شو.

حمزه شينواري له سلگونو علمي او ادبي مقالو سربېره په نظم او نثر کې په لسگونو ليکلي او چاپ شوي آثار لري چې د ځينو نومونه يې دا دي:

په منظوموکتابونو کې د بېلگې په توگه: غزونې، يون، پريونې، پسرلی په آئينه کې، بهير، ژوند او يون د خپبرووړمې او نور چې دا ټول اوس په کابل کې د اطلاعاتو او فرهنگ وزارت له خوا په درو ټوکو کې ((د اميرحمزه شينواري کليات)) په نوم چاپ شوی دی. په نثري کتابونو کې يې د تجليات محمديه، د حجاز کاروان (سفرنامه)، نوی پښتون (سفرنامه)، نوې چپې (ناول)، انساني آنا او پوهه، د خوشحال خټک يو شعر، ژورفکرونه (تکلونه) اونور يادولی شو.

حمزه شينواری د پښتو د معاصر ادب په وده او پرمختيا کې د ستاينې وړ ونډه لرلې ده. نوموړي د ادب په ډېرو څانگو، په ځانگړې توگه شاعرۍ کې د لوړ نوم او شهرت څښتن دی. پښتو غزل يې لوړ پوړ ته رسولی دی، له همدې امله ((د پښتو غزل بابا)) په درانه لقب وياړل شوی او نمانځل شوی دی.

دغه پياوړی عالم، شاعر او ليکوال د (۱۳۷۲) لمريز کال د سلواغې مياشتې په ۲۹مه نېټه د ۸۷ کلونو په عمر وفات او د پښتونخوا په لواړگي کې خاورو ته وسپارل شو.

د شعر بېلګه:

# غزل

یاره چې آسمان ته دې باڼه ګوري
سترګې دې زما په مخ کې څه ګوري

ښکلی نظر ستا چې بې قراره دی
زړه ترېنه ورک شوی دی که زړه ګوري

شونډې دې خوارۀ ستونه کړي
سترګې دې آشنا ولې تراخه ګوري

سترګې دې د سترګو په لار زړونه وړي
څوک د تورې شپې به چېرته غله ګوري

غل د محبت غلطېدای نشي
څوک چې په محفل کې چاته نه ګوري

څُشکې چې ارمان مې چینې سترګې کړې
لاړ د زړه په تل کې مې اوبه ګوري

زه ((حمزه)) په زړه هم ورکتی نشم
څه پرې که آشنا مې په لېمه ګوري

د متن لنډيز:

حمزه شينواری د پښتو د معاصر ادب ځلانده ستوری دی. په (۱۹۰۷) میلادي کال د پښتونخوا د لواړګي په سيمه کې زيږيدلی. د ديني علومو لومړنۍ زده کړه يې د خپلې سيمې له عالمانو او بيا عصري زده کړې يې تر لسم ټولګي پورې د پېښور په اسلاميه کالج کې تر سره کړې دي. ځينې رسمي او شخصي دندې يې هم ترسره کړې، خو د خپل ذوق له مخې يې د ديني او ادبي علومو مطالعاتو ته دوام ورکړ، پياوړی، شاعر ليکوال او د لوړو فلسفي افکارو خاوند شو. په شعر او ادب کې داسې پوړ ته ورسيد چې د پښتو غزل د بابا په لقب وياړل شو. د نظم او نثر په لسګونو کتابونه يې ليکلي او چاپ شوي دي چې په منظومو آثارو کې يې د غزونې، پريونې، يون، بهير، پسرل په آئينه کې، د خيبر وږمې او په منثورو آثارو کې يې د تجليات محمديه، د حجاز کاروان، نوی پښتون، نوې چپې، انساني انا او پوهه، د خوشحال خټک يو شعر او نور د بېلګې په توګه يادولی شو.

## فعاليتونه

۱ ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله په غور او دقت سره ولولي، ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي.

۲ ـ ښوونکی دې د زده کوونکو په نښه کړې کلمې پر تختې وليکي، ځينې دې د زده کوونکو په وسيله او هغه چې زده کوونکي يې په معنا او مفهوم نه پوهېږي، په خپله دې معنا او توضيح کړي.

۳ ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د متن يو يو پاراګراف په ټولګي کې ولولي. ښوونکی دې د اړتيا پر مهال ورسره مرسته وکړي.

٤ ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي او دې ته دې وګومارل شي چې متن په غور او دقت ولولي. يوه ډله دې په متن کې خاص نومونه او بله دې عام نومونه په نښه کړي، د هرې

ډلې استازی دې د نورو په استازيتوب هغه جلا جلا پر تختې وليکي. ښوونکی دې د اړتيا پر مهال د خاصو او عامو نومونو د لست په بشپړولو کې له زده کوونکو سره مرسته وکړي.

خاص نوم: هغه دی چې يو ځانګړی وګړی (شخص)، شيز يا ځای نوموي، لکه احمدشاه بابا، ننګرهار، پېښور او نور.

عام نوم: چې په عام ډول شيان نوموي، لکه: ګل، غر، پوهنتون او نور.

۵ـ زده کوونکي دې په نوبت سره تختې ته ورويلل شي چې يو خاص يا عام نوم په مناسبه جمله کې وکاروي.

۶ ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د ټولګيوالو په وړاندې د لوست مفهوم په خپلو الفاظو ووايي.

۷ـ د لوست د زده کړې ارزونه دې په دې لاندې پوښتنو وشي:

- حمزه شينواری څه ډول شخصيت و؟
- حمزه شينواری په کوم کال چېرې زېږېدلی و؟
- د حمزه شينواري د پنځو منظومو آثارو نومونه واخلئ.
- د حمزه شينواري د پنځو نثري کتابونو نومونه واخلئ.
- حمزه شينواری کله وفات او چېرې ښخ دی؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه په متن کې د امير حمزه شينواري د شعر مفهوم په لنډه توګه وليکي او د پښتو په راتلونکي درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګيوالو ته ولولي.

# د پښتو ادبياتو لرغونې دوره



ــ تاسې پوهېږئ چې د ادب تاريخ څه ته وايي؟

ــ د ادبياتو په تاريخ کې مو د ادبي دورو نوم اورېدلی؟

ــ د پښتو ادب لرغونې دوره څه معنا او مفهوم لري؟

د ادب يا ادبياتو تاريخ په بېلا بېلو دورو کې د يوې ژبې د ادبياتو د ودې او پرمختيا جريان څېړي. د هرې ژبې ادبيات په تاريخي لحاظ په څو بېلا بېلو دورو وېشل کېږي.

ادبي تاريخ ليکونکو د پښتو ژبې ادبيات په تاريخي لحاظ په درو سترو دورو وېشلي دي:

(۱) لرغونې دوره (۲) منځنۍ يا کلاسيکه دوره (۳) اوسنۍ يا معاصره دوره.

په دې لوست کې د پښتو ادب لرغونې دوره در پېژنو.

ادبي تاریخ د تاریخ په اوږدو کې د یوې ژبې د ادبیاتو د ودې او پرمختیا څرنګوالی بیانوي.
د ادبیاتو تاریخ د یوې ژبې ادبیات په بېلابېلو دورو وېشي. د ادبیاتو د تاریخ هره دوره خپلې ځانګړنې لري چې د هغو له مخې یوه دوره له بلې جلا کېږي. د پښتو د ادبي تاریخ لیکونکو د پښتو ژبې ادبیات په درو سترو دورو بېل کړي دي:

لومړۍ دورې ته یې د پښتو ادبیاتو لرغونې دورې نوم ورکړی دی. دویمې دورې ته منځنۍ یا کلاسیکه دوره وایي او درېیمه دوره یې معاصره یا اوسنۍ ادبي دوره نومولې ده. د پښتو ادب منځنۍ او معاصره دورې به په راتلونکو ټولګیو کې ولولئ. دلته د پښتو ادب لرغونې دوره درپېژندل کېږي.

موږ د پښتو ادبیاتو ډېر لرغوني آثار په لاس کې نه لرو. هغه څه چې په لاس کې یې لرو، له اسلام څخه په راوروسته زمانې پورې اړه لري. څرنګه چې د یوې ژبې د ادبي تاریخ دورې د موجودو آثارو له مخې ټاکل کېږي، نو ځکه موږ د پښتو ادب تاریخ لومړنۍ یا لرغونې دوره له دویمې هجري پېړۍ څخه را پیل شوې ګڼو. دا چې له دویمې هجري پېړۍ څخه تر (۱۰۰۰) هجري کال پورې موږ ته د لږ شمېر شاعرانو او لیکوالو د نظم او نثر آثار په لاس راغلي دي، نو ځکه د ادبي تاریخ لیکونکو دغه د اوو یا اتو پېړیو ادبیات ټول په یوې دورې کې شامل کړي دي.

د پښتو ادب لرغونې دوره د امیرکروړ سوري د تر لاسه شوي شعر څخه راپیلېږي. دغه شعر چې یوه ویاړنه یا حماسي سندره ده، د دویمې هجري پېړۍ په لومړۍ نیمایي کې ویل شوی دی. دا شعر موږ ته د محمد هوتک د پټې خزانې په وسیله را رسېدلی دی.

امیر کروړ د امیر پولاد سوري زوی و. نوموړی پر (۱۳۹ هـ.ق.) کال د غور په مندېش کې پاچا او پر (۱۵٤ هـ.ق.) کال د پوشنج په جګړو کې مړ شو. امیرکروړ سربېره پردې چې یو عادل پاچا او واکمن و، د پښتو ژبې شاعر هم و. د نوموړي کوم شعر چې پټې خزانې موږ ته رارسولی دی، مطلع یې داسې ده:

زه یم زمری په دې نړۍ له ما اتل نسته
په هندوسند و پر تخار او پر کابل نسته
بل په زابل نسته _ له ما اتل نسته

له امیر کروړ وروسته چې د پښتو ژبې کوم بل شاعر او لیکوال موږ ته را معلوم دی، هغه ابو محمدهاشم سرواني دی. نوموړي په (۲۲۳هـ.ق.) کال د هلمند په سروان کې زېږېدلی و. لومړنۍ زده کړې یې په خپله سیمه کې کړې او بیا عراق ته تللی و. په (۲۹٤هـ.ق.) کال بېرته خپل هېواد ته راغلی او په (۲۹۷هـ.ق.) کال مړ دی. د ابوهاشم یو شعر چې د خپل استاد ابن خلا د عربي شعر یې پښتو ته را ژباړلی دی، موږ ته را پاتې دی. د شعر مطلع داسې ده:

ژبه هم ښه وینا کاندې چې وینه
د خاوند په لاس کې زر او درهمونه

په پټه خزانه کې راغلي چې ابو محمد هاشم ابن زید السرواني د ((سالو وږمه)) په نامه په پښتو نثر کې یو کتاب هم لیکلی و. خو دا د پښتو نثر لومړنی کتاب تر اوسه نه دی ترلاسه شوی.

په دریمه هجري پېړۍ کې موږ د بیټ نیکه په نامه یو بل عارف او پښتون شاعر پېژنو. د نوموړي یو عرفاني شعر او د ژوند لنډ حالات موږ ته د سلیمان ماکو د ((تذکرة الاولیاء)) نومي کتاب په وسیله را رسېدلي دي. د شعر لومړي بیتونه یې دادي:

لویه خدایه لویه خدایه ستا په مینه په هر ځایه
غر ولاړ دی درناوي کې تـوله ژوي په زاري کې
دلته دي د غرو لمنې ز موږ کېږدی دي پکې پلنې

دا وګړي ډېر کړې خدایه
لویه خدایه _ لویه خدایه

تذکرة الاولیاء او پټه خزانه موږ ته په همدغه دریمه او څلورمه هجري پېړۍ کې د شیخ اسمعیل او خرښبون په نامه دوه نور شاعران هم راپېژني. په پورتنیو کتابونو کې د دغو شاعرانو د شعرونو بېلګې هم خوندي دي. په همدغې زمانه کې د نصر لودي او شیخ رضي لودي په نامه دوه نور پښتانه شاعران هم تېر شوي دي.

په پنځمه هجري پېړۍ کې موږ د شیخ اسعد سوري په نامه یو پیاوړی شاعر پېژنو. نوموړی د خپل معاصر واکمن امیرمحمد سوري ویرنه ویلې ده چې مطلع یې داده.

د فلک لـه چـارو څـه وکـړم کوکار
زمولوي هر ګل چې خاندي په بهار

تر دی وروسته د ښکارندوی غوري په نامه یو شاعر را معلوم دی چې په شپږمه هجري پېړۍ کې یې د واکمن شهاب الدین غوري په ستاینه کې یوه قصیده ویلې ده. د قصیدې مطلع داسې ده:

د پسرلی ښکلونکي بیا کـړل سینګارونه
بـیـا یـې ولـونـل پـه غـرونـو کـې لالـونـه

د ادبیاتو د تاریخ په دغه دوره کې د ملک یار غر شین په نامه شاعر هم لرو چې د سلطان شهاب الدین غوري معاصر دی. د نوموړي یو شعر را پاتې دی چې په هندوستان کې یې د غوریانو د سوبو په مهال افغاني غازیان هڅولي دي. د دغه شعر لومړۍ کړۍ داسې ده:

څښتن مو مل دی اوس مو یرغل دی هېواد د بل دی
غازیانو ګورئ څښتن مو مل دی

تایمني هم د همدغې زمانې شاعر دی چې یو شعر یې د شهاب الدین غوري په ستاینه کې ویلی او موږ ته را رسېدلی دی. د شعر لومړی بیت داسې دی:

نـن زه غـږېـږم پـه صـفـت د سلطان
چې دی بـادار غـازي ملک د جهان

د سلیمان ماکو په نامه یو پښتون لیکوال پېژنو چې د اوومې هجري پېړۍ په لومړیو

کې له (۶۱۲هـ.ق.) کال را وروسته یې د ((تذکرة الاولیا)) په نامه په پښتو نثر کې یو کتاب لیکلی دی. د دې کتاب د سر څو پاڼې ترلاسه شوې دي. په هغو پاڼو کې یې د پښتو څلور تنه پخواني شاعران راپېژندلي او د هغې د شعر بېلګې یې هم خوندي کړي دي. د پښتو دغه پخواني شاعران دا دي: بیټ نیکه، شیخ اسمعیل، ملک یار غر شین او قطب الدین بختیار کاکی دی. سلیمان ماکو د اوومې هجري پېړۍ په لومړیو کې د کندهار په ارغسان کې اوسېده. د بارک خان سابزی ماکو زوی و.

پر افغانستان باندې د چنګېز د یرغل په زمانه کې د بابا هوتک او د هغه زوی ملک یارهوتک په نامه دوه نور پښتانه شاعران لرو. د دوی د شعرونو یوه یوه بېلګه موږ ته راپاتې ده. د بابا هوتک د حماسي سندرې مطلع چې پښتانه یې پکې د یرغلګرو په وړاندې مقاومت ته هڅولي دي، دا ده:

پر سور غر بل راته نن اور دی    وګړیه جوړ راته پیغور دی
په کلي کور باندې مغل راغی    هم په غزني هم په کابل راغی

شیخ متي هم د همدغې زمانې شاعر دی. نوموړی په (۶۸۸هـ.ق.) کال د کلات د ترنک د سیند په غاړه وفات شوی او د کلات پر غونډۍ ښخ دی. د شیخ متي یوه عرفاني سندره موږ ته د پټې خزانې په وسیله را رسېدلې ده. د شعر مطلع یې دا ده:

په لویو غرو هم په دښتو کې    په لوی سهار په نیمو شپو کې
په غاړه غږ او په شپېلکو کې    یا د ویر ژلیو په شپېلو کې

تول ستا د یاد ناري سورې دي
دا ستاد مینې نندارې دي

په اتمه هجري پېړۍ کې د اکبر زمینداوري په نامه خوږ ژبی شاعر لرو. وایي چې دغه شاعر د شعرونو لوی دیوان درلود، خوله بدمرغه چې د زمانې توفاني سېلیو له ځان سره وړی دی. د اکبر یو مثنوي او څو غزلې خوندي دي. د یوې غزلې لومړی بیت یې دا دی:

د خپل ځـان لـه حیـرانیـه څـه ویـل کـړم
د عـشـق ویـر بـه تـل پـه خپله پـټـول کـړم

خلیل خان نیازی او سلطان بهلول لودي دواړه د نهمې هجري پېړۍ شاعران دي چې په هندوستان کې اوسېدل. زرغون نورزی هم د همدغې زمانې شاعر دی چې د کندهار اوسیدونکی و. د نوموړي یوه ساقي نامه راپاتې ده چې څو لومړي بیتونه یې دا دي:

ساقـي پـاځـه پیاله را کـړه    مــرور یــار مـې پـخـلا کـړه
اوبـــه تـویـې پـه لـمبـو کـړه    اور مې مړ په دې اوبـو کړه
پسرلی سو غونچه گـل کا    زلـفـې تـــاوې د سُـنبـل کا

د نهمې هجري پېړۍ په وروستیو او د لسمې پېړۍ په لومړیو کې درې پیاوړې ښځینه شاعرانې هم پېژنو. لومړۍ زرغونه کاکړه ده چې د ملادین محمد کاکړ لور او د کندهار د پنجوایي اوسېدونکې وه. نوموړې پیاوړې شاعره او ښه خطاطه وه. په (۹۰۳هـ.ق.) کال یې د شیخ سعدي شېرازي ((بوستان)) پښتو ته ژباړلی دی. د یوه حکایت څو بیتونه یې دا دي:

اورېـــدلـــې مـــې قـصـه ده    چې لـه شاتو هـم خـوږه ده
د اخـتـر پـه ورځ سـهـار    بـایـزیـد چـې و رویـــدار

بله شاعر رابعه نومېدله چې د مغلي واکمن ظهیرالدین بابر معاصره وه. د شعرونو دیوان یې درلود، خو اوس ورک دی. دا لاندې څلوریزه یې پټې خزانې خوندي کړې او تر موږ یې را رسولې ده:

آدم یـې ځـمکـې وتـه راسـتـون کا    پـه اور د غـم یـې سـوی لـړمـون کا
دوزخ یـې روغ کـا پـر مـخ د ځمکې    نـــوم یـــې د هـغـه دلـتـه بـېـلـتـون کا

بي بي نېکبخته هم د دغې زمانې شاعره ده. پر (۹۶۹هـ.ق.) کال يې د ((ارشاد الفقراء)) په نامه يو کتاب په پښتو ژبه ليکلی چې محمد هوتک يې په پټه خزانه کې نمونې خوندي کړې دي. يوه بېلګه يې دا ده:

| | |
|---|---|
| په زړه ښاد شې ای مؤمنه! | په ظاهر په باطن سپينه |
| ظاهر زهد په اخلاص کړه | په زړه ټينګ شه له يقينه |
| شکر صبر په هر حال کړه | خود نمای مه شه خود بينه |

دوست محمد کاکړ هم د لسمې هجري پېړۍ د لومړۍ نيمايي شاعر دی چې پر (۹۲۶هـ.ق.) کال يې د ((غرغښت نامې)) په نوم په نظم يو کتاب ليکلی دی. شيخ بوستان بړېڅ هم د همدغې زمانې شاعر دی. د ((بستان الاولياء)) په نامه يې پښتو کتاب ليکلی دی.

په لرغونې دورې کې سربيره له پورتنيو شاعرانو او ليکوالو څخه چې موږ يې د ژوند او آثارو په باب لنډې لنډې څرګندونې وکړې، محمد هوتک په خپل اثر ((پټه خزانه)) کې د ځينو نورو ليکوالو او د هغو د آثارو نومونه اخيستي دي، لکه د شيخ کټه ((لرغوني پښتانه))، د محمد بن علي البستي تاريخ سوري او نور، خو دا چې په خپله دغه آثار او د هغو د ليکوالو په باب معلومات نه دي ترلاسه شوي، نو ځکه يې په اړه څه نه وايو.

د پښتو لرغونې دوره چې د دويمې هجري پېړۍ له لومړۍ نيمايي څخه پيل او تر (۱۰۰۰) هجري قمري پورې را رسېږي، په عمومي ډول د دې دورې ځانګړنې په لنډه توګه داسې ښودلی شو:

۱ـ په لومړۍ دورې کې موږ د ډېرو لږو شاعرانو او ليکوالو د منظومو او منثورو آثارو ډېرې لږې بېلګې په لاس کې لرو.

۲ـ که د دغې دورې آثار د کميت په لحاظ لږ دي، خو په کيفي لحاظ يې ځينې آثار ډېر لوړ ارزيابي کېدای شي، لکه: د غوري دورې قصيدې، د شيخ متي مناجات، د اکبر زميندآوري شعرونه او نور.

۳ـ په دغې دوره کې ادبي آثارو د شکل او موضوع له مخې وده او پرمختيا موندلې

ده. قصيده، غزل، څلوريزه، مثنوي او نور شعري فورمونه پښتو ادب ته راغلي دي. ديني، اخلاقي، عشقي، حماسي او عرفاني مسايل په شعر او ادب کې بيان شوي دي.

٤ـ په دغې دوره کې ژباړه دود شوې، د ابوهاشم سرواني ژباړلی شعر او د زرغونې کاکړې پښتو بوستان يې غوره بېلګې دي.

٥ـ د دربارونو له خوا پښتانه شاعران او ليکوالان روزل شوي، غوره بېلګې يې د سوريانو، غوريانو او لوديانو په دربارونو کې پښتو پالنه ده.

٦ـ د دغې دورې زياتره د نظم او نثر آثار موږ ته د ((تذکرة الاولياء)) او ((پټې خزانې)) په وسيله را رسېدلي دي.

٧ـ د دې دورې په آثارو کې که له يوې خوا د پښتو زاړه لغات او ترکيبونه راغلي، له بلې خوا پرې د دري او عربي ژبې اغېزه هم څه ناڅه ښکاري.

د متن لنډيز:

لرغونې دوره د پښتو ادبياتو د تاريخ لومړۍ دوره ده. دغه دوره له دويمې هجري پېړۍ څخه پيل او تر (١٠٠٠) هجري قمري پورې رسېږي. د دې دورې ډېر لږ آثار د زمانې له توفانونو څخه پاتې او تر موږ را رسېدلي دي. د دې دورې په نوميالیو شاعرانو او ليکوالو کې د امير کروړسوري، بيټ نيکه، شيخ اسمعيل، شيخ خرښبون، شيخ اسعد سوري، ښکارندوی غوري، شيخ تيمن کاکړ، شيخ متي، نصرلودي، شيخ رضي لودي، بابا هوتک، سليمان ماکو، اکبر زمينداوري، زرغون خان، رابعه، بي بي نيکبخته، زرغونه کاکړه، دوست محمد کاکړ او نور دي.

د دې دورې د زياترو شاعرانو د ژوند په باب معلومات او د آثارو بېلګې موږ ته د سليمان ماکو د پښتو اثر ((تذکرة الاولياء)) او د محمد هوتک د ((پټې خزانې)) په وسيله را رسېدلي دي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې په غور سره متن ولولي او ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي.
۲ـ ښوونکي دې ستونزمنې کلمې پر زده کوونکو معنا او که هغوی يې نشي حل کولای، په خپله دې توضيح کړي.
۳ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د متن يو يو پراګراف ولولي. ښوونکی دې د اړتيا پر مهال ورسره مرسته وکړي.
٤ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي او ورته ودې ويل شي چې متن يو ځل بيا په غور ولولي. يوه ډله دې په متن کې د اشخاصو نومونه او بله ډله دې د کتابونو نومونه وليکي. د هرې ډلې استازی دې هغه پر تختې وليکي. ښوونکی دې د هغه لست په بشپړولو کې مرسته وکړي او د ځينو شاعرانو، ليکوالو او کتابونو په اړه دې لازمې څرګندونې وکړي.

۵ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د پښتو ادب د لرغونې دورې ځانګړنې په خپلو الفاظو کې نورو زده کوونکو ته ووايي.
٦ـ ښوونکی دې د بيټ نيکه د مناجات دا لاندې بند پر تخته وليکي او له زده کوونکو دې وغواړي چې د هغه مفهوم او معنا په خپلو کتابچو کې وليکي.

لويه خدايه لويه خدايه ستا په مينه په هر ځايه
غر ولاړ دی درناوی کې ټوله ژوي په زاری کې
دلته دي د غرو لمنې زموږ کيږدی په کې پلنې
دا وګړي ډير کړې خدايه
لويه خدايه لويه خدايه

دلـتـه لـړ زمــوږ اور بــل دی     ووړ کورګی دی ووړ بورجل دی
مینه ستا کې مــوږ مېشته یو     بــل د چـا پـه مـلـه تـلـه نـه یو
هسک او مځکه نغښته ستا ده     د مـــړو وده لـــه تــا ده

دا وګـــړي ډېـــر کـــړې خـدایـه
لـویـه خــدایـه لـویـه خـدایـه

۷ـ ښوونکی دې په دې لاندې پوښتنو د لوست ارزونه وکړي:

- د پښتو ادب تاریخ په څو دورو وېشل شوی دی. نومونه یې واخلئ.
- لرغونې دوره له کومې پېړۍ څخه پیل او تر کومه وخته رارسېږي؟
- د پنځو لرغونو شاعرانو نومونه واخلئ.
- د دریو ښځینه پښتو شاعرانو نومونه واخلئ.
- د څو لرغونو کتابونو نومونه واخلئ.
- د دې دورې د شاعرانو په شعرونو کې مو د چا شعر خوښ شو؟
- که د کوم شاعر د شعر بیت مو زده شوی وي، ویې وایئ.
- د لرغونې دورې  د ادبیاتو څو ځانګړنې ووایئ.



## کورنی دنده

زده کوونکي دې د کورنی دندې په توګه په متن کې د راغلي یوه شاعر په هکله معلومات ولیکي او د پښتو لوست په راتلونکي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ولولي.



# د لويو جرګو تاريخچه

ـ ويلی شئ چې جرګه څه ته وايي؟

ـ تاسې په کور وکلي کې ليدلي چې د يوې ستونزې د حل لپاره مشران را ټول شي او د هغه په باب پرېکړه وکړي؟

جرګه هغې غونډې ته وايي چې د قبيلوي، قومي، ولسي او ملي مسايلو د حل او څېړلو لپاره جوړېږي. جرګه ځانګړي اصول او مقررات لري. جرګه په دوه ډوله ده. يوې ته يې کليوالي جرګه او بلې ته يې لويه جرګه وايي. په دې لوست کې جرګه، د هغې اصول او مقررات او د جرګو ډولونه در پېژنو او د لويې جرګې د تاريخچې په هکله معلومات درکوو.

د جرگې د کلمې معنا او مفهوم په هغې غونډې اطلاق کېږي چې د پرېکړې او فیصلې صلاحیت لري او حکم یې د منلو وړ وي.

په عام ډول د جرگې اصطلاح د هغې غونډې لپاره کارول کېږي چې د ځانگړو قومي، ولسي او ملي مسایلو د حل او څېړلو لپاره جوړېږي.

افغاني ولسي جرگې خپل ځانگړي اصول، قوانین او کړنلاره لري. په هره سیمه کې د جرگو مرکو خلک معلوم، منل شوي او پېژندل شوي وي. دغو خلکو ته په ولسي اصطلاح جرگه مار، مرکچیان یا مشران ویل کېږي. جرگه خاص مشر نه لري، مشران او د نظر خاوندان د یوې پېښې د حل لپاره سره راغونډېږي. کله چې راغونډ شي، معمولاً په دایروي بڼه کښېني. د پورته او ښکته امتیاز پکې نه وي، پر موضوع باندې بحث په آزاده بڼه دوام مومي. هر څوک په خپل وار پر اړونده موضوع باندې خبرې او تبصره کوي. په جرگه کې هر څوک له ټولنیز پوړ یا دریځ (موقف) او امتیاز څخه پرته خپل نظر څرگندوي.

جرگه زموږ په ولسي او ملي عنعناتو کې ډېر لوړ ځای او ستر اهمیت لري. په تاریخي لحاظ په افغاني ټولنه کې له ډېرې لرغونتیا څخه برخمنه ده. له تاریخي څېړنو څخه جوتېږي چې لرغونو آریایانو به خپلې زیاتره ټولنیزې کوچنۍ او سترې مسئلې د جرگو مرکو له لارې هوارولې.

آریایانو په عمومي توگه دوه ډوله جرگې درلودې چې یوې ته یې ((سیمتي)) او بلې ته ((سبها)) ویله. په لومړۍ کې به د قبیلې سپین ږیري او مشران راغونډېدل او دویمې یې کلیواله بڼه درلوده. یا په بله وینا، ((سیمتي)) په اوسني مفهوم د مشرانو جرگې رول درلود او د قبیلې سترې مسئلې، لکه: د مشر ټاکل، له خپل ټاټوبي څخه دفاع او داسې نورې به یې حل کولې او ((سبها)) د یوې وړې کلیوالې جرگه گۍ یا مرکې دنده درلوده چې په کوچنیو کورنیو او کلیوالي مسایلو به یې غور کاوه. همدغه جرگې مرکې افغانانو تر ننه د یوه غوره میراث په توگه ژوندۍ ساتلي او په ملي عنعناتو کې یې ډېر ستر ارزښت او اهمیت لري.

په عام مفهوم، اوس زموږ په هېواد کې جرگې په دوو بڼو جوړېږي: یو په کلیواله او سیمه ییزه سطحه د کورنیو، خېلونو، قبیلو او قومونو ترمنځ د راولاړو شوو شخړو او مسایلو د هوارولو لپاره چې دې ډول جرگې ته ((کلیوالي)) یا ((سیمه ییزې)) جرگې وایي.

بل په ملي سطحه د یوه ستر ملي مقصد او مرام لپاره جوړې شوې جرگې دي چې هغوته د ((لویې جرگې)) نوم ورکړل شوی دی.

لویې جرگې زموږ د هېواد په تاریخ کې له ډېر ستر ارزښت او اهمیت څخه برخمنې دي. دغه ډول جرگې زموږ د هېواد په تاریخ کې په ملي کچه هېواد ته د ورپېښو ستونزو او کړکېچونو، لکه: د مشرتابه ټاکلو، د بهرنیو یرغلونو په وړاندې د پاڅونونو او نورو سترو ملي مسایلو د حل وفصل لپاره جوړې شوې دي. هرې یوې جرگې په خپل وخت او ځای ډېرې ارزښتناکې اغېزې او پایلې (نتیجې) لرلي او ملت یې په ډېرو حساسو او نازکو حالاتو کې له سترو بحرانونو څخه ژغورلی دی.د دغو لویو جرگو په لړ کې د بېلگې په توگه د میروس خان نیکه د وخت درې لویې جرگې یادولی شو. لومړۍ جرگه پر (۱۱۰۵هـ.ق.) کال د کوکران په کلي کې جوړه شوې وه، دویمه په (۱۱۱۹هـ.ق.) کال په مانجه کې او درېمه په همدغه کال په کندهار کې جوړه شوې وه. دغو جرگو ملت د بهرنیو په وړاندې پاڅون ته چمتو او میرویس نیکه یې د ملي مشر په توگه ټاکلی دی. د شېر سرخ د مزار لویې جرگې په (۱۷۴۷م.) کال کې احمدشاه بابا د ملي مشر او واکمن په توگه وټاکه. همدارنگه پر افغانستان د انگرېزانو له یرغل څخه وروسته په (۱۸۴۱م.) کال کې د ملي مجاهدینو لویې جرگې ملت پاڅون ته چمتو او د پاڅون مشرتوب یې وټاکه. همدارنگه د امیر شېرعلی خان د واکمنۍ په لویې جرگې کې پاچا نوې کابینه (صدراعظم او وزیران) وټاکل. د امیر حبیب الله خان د وخت لویې جرگې په لومړنۍ نړیوالې جگړې کې یې د افغانستان بې طرفي تصویب کړه او وروسته د امیر امان الله خان، د واکمنۍ پر مهال څلور لویې جرگې جوړې شوې دي: په لومړۍ لویه جرگه (۱۹۲۰م.) کال کې هېواد او خلک د خپلواکۍ ساتنې لپاره چمتو کړای شول. په دویمه

لويه جرگه کې په (۱۹۲۳م.) کال د هېواد لومړنی اساسي قانون تسويد شو. په درېمه جرگه کې په (۱۹۲٤م.) کال د کورني اړدوړ د آرامولو لپاره تدبيرونه ونيول شول او په څلورمه لويه جرگه کې په (۱۳۰۷) لمريز کال اروپا ته د امان الله خان د سفر پايلې وڅېړل شوې. د نادرخان د واکمنۍ پر مهال لويې جرگې په (۱۳۰۹) لمريز کال د هېواد اساسي قانون تسويد کړ، د محمد ظاهرشاه د واکمنۍ پر مهال په (۱۹٤۱م.) کال لويې جرگې په دويمې نړيوالې جگړې کې د هېواد د برخې نه اخيستلو پرېکړه وکړه، د (۱۳٤۳) لمريز کال لويې جرگې د هېواد نوی اساسي قانون تسويد کړ او همدارنگه تر اوسه پورې نورې لويې جرگې هم جوړې شوې چې هرې يوې پر خپل وخت ځانگړی ارزښت او اهميت لرلی دی.

نو د پايلې په توگه د ويلو ده چې لويې جرگې د افغاني ټولنې د ملي تفاهم يوه ډېره مهمه او اغېزناکه وسيله ده، زموږ پر ملت او ټولنې ډېرې ژورې ټولنيزې، رواني او روحاني اغېزې لري. همدې جرگو د پېړيو په پوړيو کې د ډېرو سترو کړکېچونو پرمهال هېواد ژغورلی او له ستونزمنو حالاتو سره د مقابلې لپاره يې چمتو کړی، نو موږ بايد د دغې عنعنې درناوی وکړو او ژوندۍ يې وساتو.

د متن لنډيز:

د جرگې اصطلاح د هغې غونډې لپاره کارول کېږي چې د ځانگړو، قبيلوي، قومي، ولسي او ملي مسايلو د حل او څېړلو لپاره جوړېږي. افغاني جرگې ځانگړې اصول او مقررات لري، په ولس کې د جرگې کسان معلوم دي، هغوی راغونډېږي، پر ستونزه باندې آزادانه بحث کوي او خپله پرېکړه اعلانوي. جرگې دوه ډوله دي: يوې ته يې کليوالي او بلې ته لويې جرگې وايي. لويوجرگو زموږ د هېواد د معاصر تاريخ په وروستيو درو پېړيو کې په ډېرو حساسو او نازکو حالاتو کې ارزښتمن رول تر سره کړی دی.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن له ځان سره په چوپه خوله ولولي. ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي.

۲ـ زده کوونکي دې په نوبت سره په نښه کړې ستونزمنې کلمې ووايي. ښوونکی دې هغه پر تختې وليکي. ځينې دې په خپله پر زده کوونکو معنا کړي او هغه چې زده کوونکي يې نشي معنا کولای، په خپله دې معنا کړي او د متن په هکله دې لازمې توضيحي خبرې وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې د نورو ټولګيوالو په وړاندې د متن يوه يوه برخه ولولي. ښوونکی دې د اړتيا پرمهال لازمه مرسته وکړي.

٤ـ زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته وروبلل شي چې د متن عمومي معنا او مفهوم په خپلو الفاظو ووايي.

۵ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي: يوه ډله دې وګومارل شي چې په متن کې صفتونه په نښه کړي او بله ډله دې قيدونه. بيا دې د هر ډلې استازی د ټولګيوالو په مخ کې خپل په نښه کړي قيدونه او صفتونه ولولي. ښوونکی دې هغه پرتخته وليکي.

**قیدونه**: هغه کلمې يا ژبني توکي دي چې په جمله کې د فعل حالت څرګندوي، يا د فعل د پېښېدلو څرنګوالی ښيي، لکه: ښوونځي ته ژر لاړ شه. په دې جمله کې ژر قيد دی.

**صفتونه**: هغه کلمې دي چې د نومونو حالت او څرنګوالی ښيي. يعنې دا چې صفت د نوم معنا څرګنده او روښانوي، لکه: روغ، ناروغ، ښکلی، بدرنګ، بد، ښه، سپين، تور او نور.

۶_ د یوې ډلې زده کوونکي دې په نوبت سره تختې ته وروبلل شي چې پر تختې لیکل شوي قیدونه او د بلې ډلې زده کوونکي دې لیکل شوي صفتونه په مناسبو جملو کې استعمال کړي.

۷_ زده کوونکي دې د یوې موضوع د حل لپاره د جرګې په دود را ټول او جرګه دې تمثیل کړي.

۸_ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې د کچې ارزونه وشي:

- جرګه څه شی ده؟
- څو ډوله جرګې پېژنئ؟
- زموږ په لرغوني هېواد (آریانا) کې څو ډوله جرګې موجودې دي، نمونه یې واخلئ؟
- لومړنۍ لویه جرګه چې په تاریخ کې موږ ته معلومه ده، د کوم واکمن په وخت کې جوړه شوې وه؟
- احمد شاه بابا د کومې لویې جرګې له خوا د افغانستان د واکمن په توګه وټاکل شو؟
- د اعلیحضرت امان الله خان په وخت کې څو لویې جرګې جوړې شوې او هغه کومې وې؟
- د کوم واکمن په وخت کې لویې جرګې په دویمه نړیواله جګړه کې د افغانستان بې طرفي تصویب کړه؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د لوست مفهوم په خپلو الفاظو ولیکي او په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې هغه د نورو ټولګیوالو په وړاندې ولولي.





# په پښتو ادب کې لنډه کیسه

ـ تاسې کیسه پېژنئ؟

ـ کله مو داسې کیسه لوستې یا اورېدلې چې د ژوند رښتیني واقعیتونه پکې ډېر ښه بیان شوي وي؟

انسان په فطري ډول د کیسې اورولو او اورېدلو ذوق لري. دغه د کیسې اورولو او اوریدلو هیله او غوښتنه هغه ځانګړنه ده چې د انسان په خټه کې اخښل شوې ده. له همدې امله ده چې د بشري تاریخ په اوږدو کې د کیسو بېلابېل ډولونه رامنځته شوي دي. د کیسې په ډولونو کې یو مهم ډول لنډه کیسه ده چې په دې لوست کې یې در پېژنو او په پښتو ادب کې یې پر تاریخي بهیر بحث کوو.

د لنډې کیسې یوه ډېره عامه پېژندنه داسې ده چې: ((لنډه کیسه هغه نثري داستان دی چې لنډ وي او له نیم ساعت څخه تر دوو ساعتو پورې ختم شي.)) ځینې لیکوال بیا وایي چې لنډوالی د لنډې کیسې لپاره یوازینی شرط نه دی، بلکې د دې ترڅنګ ځینې نورې ځانګړتیاوې هم لري او هغه دا چې: منظمه او مشخصه طرحه لري. یو اصلي کرکټر په کې وي، لنډه وي، بې ضرورته خبرې پکې نه ځایېږي او ټولې برخې یوه له بلې سره متقابلې اړیکې لري او یوه اغېزه ښندي.

لنډه کیسه د اوسني پر مختللي عصر زېږنده او پیداوار ده. څومره چې بشري ټولنې له یوې ورځې څخه بلې ته په ذهني او مادي لحاظ د پرمختګ پړاوونه وهلي دي، په هماغه اندازه د انسانانو ضرورتونه او مصروفیتونه هم زیات شوي دي. پروني انسان چې ډېر وزګار وختونه او فرصتونه یې لرل، نو شپې شپې به یې د مینې او محبت په روماني کیسو او دجنګونو او ننګونو په حماسي کیسو سبا کولې او یا به یې د ښاپېریانو او دیوانو خیالي او موهومي اوږدې اوږدې کیسې لوستلې او اورېدلې له دغو کیسو څخه به یې خوندونه، پندونه او انتباه اخیستله او هم به یې د کیسې اورېدنې تنده پرې خړوبوله.

خو د اوسنی زمانې انسان د ژوندانه په بهیر کې د ډېرو بوختیاوو له امله دا کار نشي کولای، نو څرنګه چې د کیسو یا پېښو اورېدنه او ځان خبرونه، لوستنه او ځان پرې پوهونه د انسان د ذهن فطري غوښتنه ده، له همدې امله د وخت په تېرېدو او د حالاتو په بدلېدو هغو اوږدو اوږدو کیسو او د استانونو د اوسنی لنډې کیسې بڼه خپله کړه. څرنګه چې اوس لنډه کیسه د خلکو ډېره خوښېږي، یو ډېر ستر لامل یې د وخت د ضایع کېدو مخنیوی او سپما ده.

دغه ډول کیسې لوستونکی یا اورېدونکی په لږ وخت کې لوستلای یا اورېدلای شي او ورڅخه دخوند، پند او انتباه دنده په ډېره آسانه او اغېزناکه توګه تر سره کېدلای شي.

په اوسني معاصر مفهوم د لنډې کیسې لیکنې پیلامه د نولسمې پېړۍ په لومړیو دوو لسیزو کې په اروپا کې پیل شوې او بیا نورې نړۍ ته د یوې اغېزناکې لیکنی لارې په توګه خپره شوې ده.

لنډه کیسه پښتو ادب ته د لیکنې د یوه ډول په توګه د شلمې پېړۍ په دویمه لسیزه کې راغلې ده. لومړنی پښتون لیکوال چې د لنډې کیسې پرلیکنه یې خپل قلمي ځواک آزمویلی، سید راحت زاخیلی دی چې په ۱۹۱۷ میلادي کال یې د ((کونډه نجلۍ)) په نوم لومړنۍ پښتو لنډه کیسه لیکلې او چاپ کړې ده.

په پښتونخوا کې له سید راحت زاخیلي څخه وروسته، ځینو نورو لیکوالو هم د نثري ادب دې ډول ته مخه کړې او غوره لنډې کیسې یې لیکلي دي چې په هغو کې د میا آزادګل په ۱۹۲۶م. کال کې لیکلې کیسه ((د مړي پیغام)) د بد رښو د سر بلند خان د ((نواب صاحب آشنایي)) یادولای شو. لنډې کیسې په همدغو وختونو کې لیکل شوې او خپرې شوې دي. همدارنګه په دغې دورې کې د سید رسول رسا، حمزه شینواري. ایس ای رحمان کاکاخېل، مفلس دراني، ادیب سرحدي او نورو نومونه دیادونې وړ دي چې د پښتونخوا په افغان، پښتون، اسلم او نورو مجلو او اخبارونو کې یې ډېرې غوره او معیاري لنډې کیسې چاپ شوي دي. په را وروسته کلونو کې د لنډې کیسې لیکنې په پښتونخوا کې ډېره وده او پرمختیا موندلې، په خپرونو کې د لنډې کیسې په خپرېدو سربېره لیکوالو د لنډو کیسو ډېرې ټولګې هم چاپ کړې دي. په افغانستان کې د پښتونخوا په پرتله د لنډې کیسې لیکنه وروسته دود شوې ده. لومړنی پښتون لیکوال چې په افغانستان کې یې لنډه کیسه لیکلې، پوهاند عبدالحی حبیبي دی. نوموړي لومړنۍ پښتو لنډه کیسه د ((توریالی پښتنه)) په نوم لیکلې او پر ۱۳۱۵ لمریز کال په طلوع افغان کې خپره شوې ده.

وروسته بیا ځینو نور ولیکوالو هم د لنډ و کیسو په لیکنه خپل قلمي ځواک آزمویلی چې په هغو کې د استادګل پاچا الفت، سراج الدین سعید، قیام الدین خادم، عبدالقدوس پرهېز، غلام محی الدین زرملوال، عبدالرؤوف بېنوا او د نورو نومونه د یادونې وړ دی. د هغه وخت په موقوته خپرونو کې د دغو لیکوالو د لنډو کیسو غوره بېلګې چاپ شوي دي.

زمونږ په هېواد کې له ۱۳۲۰ لمریز کال راهیسې د لنډې کیسې لیکنې په برخه کې بنسټیز کار پیل شوی، ډېر پیاوړي لیکوال رامنځته شوي او په خپرونو کې په چاپ شویو لنډو کیسو سربېره یې د لنډو کیسو ټولګې هم چاپ کړي دي. د میراجان سیال ((د پښتونخوا افسانې)) او د موسٰی شفیق ((عبقریان)) نومونه د یادونې وړ دي چې د لنډو کیسو ډېرې غوره بېلګې لري. د رواني پېرۍ په پنځمې لسیزې کې د لنډې کیسې لیکنې ډېره وده او پرمختیا موندلې ده او پیاوړي لیکلوال په کې رامنځته شوي دي.

د لنډو کیسو په چاپ شوو ټولګو کې د ((سره غالۍ))، ((شاړې کوڅې))، ((ګیلې))، ((تانده غوټۍ))، ((موسکا))، ((د څپو په وزرونو))، ((سبا به بیا کله‌ې باربړي))، ((تیارې لارې رڼې کړښې))، د ((ارمانونو ځولۍ)) او نورې د بېلګو په توګو یادولای شو.

اوس په پښتو نخوا او افغانستان کې د لنډې کیسې لیکنې ډېره وده او پرمختیا موندلې او دا بهیر ښه ګړندی روان دی، ډېر لیکوال رامیدان ته شوي او په سلګونو ټولګې چې د لنډو کیسو ډېرې غوره بېلګې په کې خوندي دي، چاپ شوي. اوس لنډه کیسه د لیکنې پیاوړي لیکوال او د لوستنې ډېر مینه وال لري.

د متن لنډیز:

لنډه کیسه د اوسني معاصر نثري ادب یو په زړه پوري ادبي ډول (ژانر) دی.

هغې کیسې ته لنډه کیسه وایي چې لنډه وي او له نیم ساعت څخه تر دوو ساعتونو پورې ختمه شي. نورې ډېرې ځانګړنې هم لري.

لنډه کیسه په اوسني مفهوم په لوېدیځ کې د نولسمې پېړۍ پر لومړیو کې پیدا شوې او بیا له هغه ځایه د نړۍ نورو ژبو ته تللې ده.

پښتو ادب ته د شلمې پېړۍ په لومړیو دوو لسیزو کې راغلې او لومړنی پښتون لیکوال چې په دې ډګر کې یې خپل قلمي ځواک آزمویلی، سید راحت زاخیلی دی.

نومورى د پښتونخوا په پېښور کې پر (۱۹۱۷م.) کال د کونډې نجلۍ په نامه لومړنی پښتو لنډه کیسه ولیکله او هغه مهال خپره شوه. په افغانستان کې لومړنی لیکوال چې پښتو لنډه کیسه یې لیکلې ارواښاد پوهاند عبدالحی حبیبي دی. د ((توریالۍ پښتنه)) په نامه یې لومړنۍ پښتو لنډه کیسه و لیکله او پر (۱۳۱۵) لمریز کال یې له کندهار نه په خپرېدونکي اخبار طلوع افغان کې خپره کړه. وروسته بیا لنډې کیسې لیکنې په پښتونخوا او افغانستان کې ښه وده او پرمختیا موندلې ده، ډېر لیکوال یې را پیدا شوي او ډېرې لنډې کیسې یې د وخت په خپرونو (اخبارونو او مجلو) او ځانګړو ټولګو کې چاپ شوي او دا بهیر اوس په پښتو ادب کې ښه ګړندی روان دی.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي، ستونزمنې کلمې او مفاهیم دې په نښه او له ښوونکي څخه دې دهغو ځوابونه وغواړي.

۲ـ ښوونکی دې لومړی ستونزمنې کلمې په خپله د زده کوونکو په وسیله معنا کړي او که هغوی یې نشي معنا کولای، په خپله دې هغه معنا کړي او د ځینو مفاهیمو په اړه دې لازمې څرګندونې وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د متن یوه یوه برخه ولولي، دا لړۍ دې په ټولګي کې تر پایه تعقیب شي. د اړتیا پر مهال دې ښوونکی د متن په سمې لوستنې کې له زده کوونکو سره مرسته وکړي.

٤ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، یوه ډله په متن کې د راغلو کتابونو نومونه او بله ډله دې د اشخاصو یا لیکوالو نومونه په نښه کړي. د هرې ډلې استازی دې هغه خپل په نښه کړي د کتابونو یا اشخاصو نومونه پر تختې ولیکي. ښوونکی دې تر ممکنې اندازې د کتابونو او لیکوالو په هکله زده کوونکو ته څرګندونې وکړي.

٥ـ ښوونکی دې د لنډې کیسې یوه بېلګه زده کوونکو ته ولولي، بیا دې هغوی وګوماري چې د یوې کیسې د لیکلو هڅه وکړي.
٦ـ ښوونکی دې د هغوی لیکلې کیسې وګوري او په اصلاح او سمون کې دې له زده کوونکو سره مرسته او لازمې لارښوونې وکړي.

٧ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست زده کړې ارزونه وشي:
- لنډه کیسه څه ډول کیسه ده؟
- لنډه کیسه ولې رامنځته شوه؟
- لنډه کیسه لومړی کله او چېرې رامنځته شوې ده ؟
- د پښتو د لنډې کیسې د پنځو لیکوالو نومونه واخلئ؟
- د پښتو د لنډو کیسو د پنځو ټولګو (مجموعو) نومونه واخلئ؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې کومه چاپ شوې پښتو لنډه کیسه پیدا او د کورنۍ دندې په توګه دې د هغې لنډیز په خپلو الفاظو ولیکي او د پښتو لوست په راتلونکي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ولولي.

# ادبي ليکونه

ـ کله مو چا ته ليک ليکلی دی؟

ـ د ادبي ليک په معنا او مفهوم پوهېږئ؟

ـ ادبي ليک له عادي ليک سره څه توپير لري؟

ليک ليکنه يا مکاتبه د ليکوالۍ ډېره مهمه برخه ده. ليک ليکنه په ټولنيز ژوند کې ډېر ستر ارزښت او اهميت لري. ليکونه په دوه ډوله دي: يو عادي ليکونه چې وګړي يې په خپلو منځو کې د پوهونې، خبرونې او مقابل لوري ته د خپل پيغام رسونې لپاره ليږي. بل ډول ادبي ليکونه دي چې اديبان يې په ادبي ژبه ليکي، خپل پيغام پکې په خوږه ادبي هنري ژبه رانغاړي او مقابل لوري ته يې ورلېږي. په دې لوست کې دغه ډول ادبي ليکونه او د هغو ډولونه درپېژنو.

د ادبي لیکونو په هکله له څه ویلو د مخه دا ضروري ده چې لومړی په عامه توګه لیک
در وپېژندل شي.

لیک یا خط د وضعه شوو رسمونو یوه ټولګه او مجموعه ده. دا رسمونه وګړي په ټولنه
کې په قراردادي او اتفاقي ډول د یوې ژبې د غږونو، وینا او افکارو د لیکلو او ثبتولو لپاره
کاروي. لیک لیکنه یا مکاتبه د لیکوالۍ له ډېرو مهمو ډولونو څخه ده. د لیکنې دا ډول په
ټولنه کې ډېر ارزښت او اهمیت لري.

لیکونه په دوه ډوله دي: یو یې عادي لیکونه دي چې په شخصي او رسمي لیکونو وېشل
کېږي او بل یې ادبي لیکونه دي چې دلته یې درپېژنو.

د ادبي لیکونو د پېژندنې په لړ کې ویل کېږي: دا هغه لیکونه دي چې لیکوال پکې
ټولنیز، سیاسي، تاریخي، اخلاقي، انتقادي، انتباهي  اونور ډول ډول مسایل په ډېره ښکلې
ادبي ژبه مقابل لوري ته وړاندې کوي.

له عادي لیکونو څخه د ادبي لیکونو ډېر ستر توپیر دا دی چې په دې ډول لیکونو کې د
لیکنې ژبه ادبي وي، هنري رنګ او بڼه لري. په ادبی لیکونو کې ادبي ژبه کارول شوې وي.
په دې لیکونو کې د روحي حالت او عواطفو له بیا نولو څخه نیولې، تر هر ډول علمي،
ادبي، تاریخي او نورو هر راز مسایلو پورې مطرح کېږي. دا د ادبي لیک د لیکوال په ژبني
هنر، ذوق، ژور درک، ذهانت او د ظرافت په اندازې پورې اړه لري چې ښکلي او په زړه
پورې لیکونه تخلیق کړي. لیکوال چې هر څه لیکي او مقابل لوري ته یې لېږدول غواړي،
ژبه یې ادبي، هنري او د تخیل رنګ پرې ډېر غالب وي. د شعر په څېر له استعارو، کنایو،
تشبیهاتو او نورو ډول ډول ادبي صنعتونو څخه پکې کار اخلي. ژبه یې خوږه، رنګینه او
دومره په زړه پورې وي چې د لوستونکي ادبي تنده ماتوي او له لوستنې څخه یې ډېر خوند
اخلي.

ادبي ليکونه دوه ډولونه لري:

۱ـ هغه ادبي ليکونه دي چې په عامه توګه د اديبانو (ليکوالو او شاعرانو) ترمنځ تبادله کېږي. موږ يې په پښتو ادب کې ډېرې بېلګې لرو. ښه او غوره يې د ارواښاد پوهاند رښتين ((ادبي ليکونه)) او د مولانا عبدالقادر ((خطونه)) نومي آثارو چاپ شوې ټولګې او همدارنګه په نورو چاپي خپرونو (مجلواو اخبارونو) کې چاپ شوي ادبي ليکونه دي چې معلومو ليکوالو، هنروالو، سياستوالو او ادبپوهانو خپلو دوستانو او ارادتمندانو ته ليکلي دي. ليکوال او مخاطبين يې دواړه معلوم دي.

۲ـ هغه ادبي ليکونه دي چې ټاکلي مخاطبين نه لري او د يوه فرضي مخاطب په نوم ليکل کېږي. د دې ډول ادبي ليکونو قالب ليکوال ته د خپلو افکارو د څرګندولو يوه بهانه ده چې ددغه ډول ليک په وسيله خلکو ته خپل اندونه او نظريات په خوږه او رنګينه ادبي ژبه بيانوي. ددې ډول ليکونو د ليکنې لاره داسې ده چې ليکوال له څو کلمو يادوو درو لنډو جملو وروسته چې خپل فرضي مخاطب ته يې وړاندې کوي، هغه موضوع چې په پام کې يې لري، تعقيبوي او تر پايه يې بيانوي. په پښتو ادب کې د دې ډول ادبي ليکونو ډېرې غوره بېلګې د عبدالرؤوف بېنوا ((د زړه خواله))، د روغ لېوني ((بي بي نوره)) او د اجمل ختټک ((کچکول)) نومي چاپ شوو اثرونو کې خوندي دي.

ادبي ليکونه د پښتو منثور ادب يو ډېر په زړه پورې ادبي ډول دی، ډېر ليکوال اود لوستلو مينه وال لري. مقصد او موخه يې د ټولنې د اصطلاح او سمون لپاره د خلکو ويښول او د دې ډول ليکونو په وسيله خلکو ته آسانه خپل پيغام رسول دي. دغه ډول ليکنې د ودې او د پرمختيا په حال کې دي او ليکوال پکې خپلې پراخې تجربې کوي. د ليکنې دا ډول ليکوالو ته دا واک او ځواک ورکوي چې خپلې هيلې، ارمانونه او پېغامونه په خوږه رنګينه ادبي ژبه را ونغاړي، خپلو مخاطبينو ته يې وړاندې کړي او هغوی ته په ښه او ژر پوهېدنه کې ډېر اغېزناک واقع شي.

د متن لنډیز:

لیکونه په عامه توګه په دوه ډوله دي: عادي لیکونه او ادبي لیکونه. ادبي لیکونه هغه لیکونه دي چې لیکوال پکې ټولنیز، تاریخي، سیاسي، اخلاقي، انتباهي، عاطفي او نور ډول مسایل په ډېره ښکلې ادبي ژبه نورو ته وړاندې کوي. هغه مهمه ځانګړنه چې ادبي لیکونه له نورو عادي لیکونو څخه رابېلوي، ادبي او هنري ارزښتونه دي.

ادبي لیکونه دوه ډوله دي: یو هغه ادبي لیکونه دي چې ادیبان (لیکوال او شاعران) یې په خپلو منځو کې یو بل ته لیکي، ژبه یې ادبي، خوندوره، په زړه پورې او په ادبي صنایعو پسوللې وي.

بل هغه ادبي لیکونه دي چې ادیب یې د یوه فرضي مخاطب په نوم لیکي، ژبه یې ادبي او ډول ډول مسایل پکې خپل فرضي مخاطب ته لیکي، خو هدف یې نوره ټولنه او خلک وي. د لیکونو دواړو ډولونو په پښتو ژبه او ادب کې مناسبه وده او پرمختیا موندلې ده.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي، ستونزمنې کلمې او مفاهیم دې په نښه او له خپل ښوونکي څخه دې د هغو ځواب وغواړي.

۲ـ ښوونکی دې د زده کوونکو ستونزمنې کلمې په خپله د زده کوونکو په وسیله ځواب او که هغو یې نشي ځوابولای، په خپله دې هغه معنا او لازمي څرګندونې دې وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې په ترتیب او نوبت سره د متن یوه یوه برخه ولولي. ښوونکی دې د اړتیا پر مهال په سمون کې ورسره مرسته وکړي.

٤ـ زده کوونکي دې وګومارل شي چې یو ځل بیا ټول متن په غور او دقت سره ولولي او په

هغه کې آدات یا ویکي په نښه کړي.

۵ـ ښوونکی دې د زده کوونکو په نښه کړو ویکو (اداتو) څخه توحیدي لیست ترتیب او هغه دې پر تختې ولیکي. زده کوونکي دې هغه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

**ادات**: هغه نا خپلواکه کلمې دي چې په ځانګړې توګه کومه معنا او مفهوم نه لري، خو کله چې له نورو خپلواکو کلمو سره په جملو کې یو ځای شي، نو بیا معنا ورکوي. ادات د جملو په جوړښت کې اساسي ونډه لري او له هغو پرته جملې نه جوړېږي. ادات دا لاندې ډولونه لري:

(۱) ارتباطي ادات؛ لکه: هسې، که څه هم او داسې نور.

(۲) د عطف ادات؛ لکه: او، که، یا اونور.

(۳) د اضافت ادات، لکه: (د) د احمد قلم.

(٤) تشبیهي ادات، لکه: غوندې، په څېر، په دود، په توګه او نور.

٦ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- لیک څه شی دی؟
- لیک په څو ډوله دی؟
- عادي لیک او ادبي لیک څه توپیر لري؟
- د ادبي لیکونو د دوو چاپ شوو مجموعو نومونه واخلئ.
- د ادبي لیکونو د دوو لیکوالو نومونه واخلئ.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه په خپله د یوه ادبي لیک بېلګه ولیکي او یا دې د کوم بل لیکوال ادبي لیک ولیکي او په راتلونکی پښتو درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ولولي.

## د ادبي ليک بېلګه

ښاغلی فاضل رښتين صاحب!

خدای دې روغ جوړ لره!

موږ له ډېر وخت نه په دعاګانو آموخته شوي يو او په مکتوبونو کې هم راڅخه اول ځل دعا خولې ته راځي. دا زموږ زوړ عادت دی، مګر دومره ښه ده چې زه دغه شان دعاګانې هغه چا ته کوم چې د هغوی صحت او حيات د پښتو له پاره مفيد وي او يو کار پرې جوړ وي.

له دې خوا خير خيريت دی او تر اوسه ژوندي پاتې يو، مګر ډېر غابښونه راته چيچل کېږي. کومه اجتماعي فايده چې زموږ په نظر کې ده، هغه لاس ته نه راځي اوخلک ويده دي. مګر هغه کسان چې زموږ خبرې د ځان لپاره ښې نه ګڼي، ويښ دي او په زړه کې يې راته اچوي. کاشکې د دغه نفرت او حسادت په غرض کې د څه اجتماعي مفاد امېد هم وای.

په هر صورت، موږ اوس ماليخوليا مجبور کړي يو چې څه په زړه کې لرو، هغه ښکاره کړو او خپل هغه مسؤوليت چې د نن ورځې تفتيشونه يې پوښتنه کوي او زموږ په ژوند يې څوک پاڼه نه اړوي، تر يوه حده رفع کړو. مګر ګورو چې دا کار تر کله کولای شو. هغه څه چې يو رياست يې مقابله نه شي کولای، يو مديريت به يې څنګه وکړي. زه اوس له ډېرو مشکلاتو سره مواجه يم او که رښتيا ووايم، نو د نورو مطبوعاتو په تناسب لږ غونډې افراطي شوي يو.

خير دی، دا قصه به پرېږدو او تا ته به عرض وکړو چې ((اتحاد مشرقي)) خو ستاسې ملګرو په قلمي مرسته يو څه قدر ژوندی شوی و. يو زه خو هېڅ نشم کولای او نه زما له لاسه څه کېږي. که په دې وختو کې د ښاغلي خادم صاحب مرسته له موږ سره نه وای، نو اخبار خو به د پخوانيو مهمو ليکوالو له آثارو بېخي محروم شوی و، څکه چې ستا له خوا هېڅ رانغله، د تېرو ورځو لپاره خو ته قوي څواب لرې چې يو ډېر مهم کار در په غاړه و. اوس چې په خير کابل ته راغلې، ولې دې اتحاد مشرقي هېر کړی دی؟

رښتين صاحب! په مشرقي کې د ډېرو خلکو مينه او محبت ستاسې په نسبت وينم او ستا غوره مضامينو او آثارو ته دلته تلوسه او تنده موجوده ده. ((اتحاد مشرقي)) ستا له قلمي ملګرتيا ډېره استفاده کړې ده او همېشه مو ستاسې لور ته انتظار او سترګې وي، نو موږ مه هېروه او د دې ځای علاقمندان خوشحاله ساته.

ګل پاچا الفت

جلال آباد

(۱۳۲٦ هـ.ش. کال)

---

ياددښت: دا ادبي ليک ارواښاد استاد ګل پاچا الفت هغه مهال له جلال آباد (ننګرهار) څخه د صديق الله رښتين په نوم کابل ته لېږلی و چې دی د اتحاد مشرقي مسؤول مدير او هغه د پښتو ټولنې مشر و.





# سيند

## (ادبي هنري نثر)

ـ تاسې څو ډوله نثرونه پېژنئ؟

ـ د ادبي نثر نوم مو اورېدلی؟

ـ کوم ادبي نثر مو لوستی دی؟

ـ ادبي نثر له عادي نثر سره څه توپير لري؟

اوسني نثرونه د بڼې له مخې په دوو سترو ډولونو وېشل کېږي: ساده يا عادي نثرونه او ادبي يا هنري نثرونه.

هنري ادبي نثرونه خپلې ځانګړنې لري. د همدغو ځانګړنو په لرلو سره له ساده نثرونو څخه بېلېږي. په دغو ځانګړنو کې تر ټولو ستره او مهمه ځانګړنه هنري او ادبي ارزښت دی. هنري ادبي نثرونه ډېر ډولونه لري چې ډېر مشهور يې لنډه کيسه، ناول او ادبي ټوټه اونور دي. دلته مو په دې لوست کې د ارواښاد استاد الفت له غوره نثرونه څخه د ((سيند)) په نوم يوه ادبي ټوټه را خوښه کړې ده.

د وچو ډاګونو دښتو او مېرو له څنګه لوی سیند بهېږي، مګر دغې وچې بېدیا ته اوبه نه ورکوي.

په دغسې وچکالۍ کې چې په اوبو باندې سر ماتېږي، سیند لکه شوم بخیل په شتاب درومي او زموږ تندې ته نه ګوري.

کله چې سیند په څپو راشي، آباد پټي هم له ځانه سره یوسي.

همدغه سیند له موږ نه هغه بل خوا بل راز روان دی او له نورو سره یې رویه بل راز ده.

هلته دغسې ورانی نه کوي، دومره بخل نه لري. دغه راز بې رحمي پکې نشته.

هلته د سیند په غاړه زرشویان له شګونه زر راباسي، ماهي ګران پکې په خرواروںو کبان نیسي او ښکاریان یې په لوی او ستر ډنډ کې هیلۍ ولي. هلته له سیند نه ډېرې لویې او سترې ویالې بېلې شوې دي.

ډېر لوی لوی ډاګونه له اوبو لاندې شوې، کلي او ښارونه آباد شول، شاړې ځمکې په ثمر راغلې، د غلو او مېوو پکې څه کمی نشته.

هلته د سیند په مخکې لوی لوی بندونه جوړ شول، د برېښنا ماشینونه ودرېدل، فابریکې او کارخانې په کار ولوېدې، خلک آباد او ماړه شول.

دا سیند ولې دلته دغسې او هلته هغسې دی.

موږ ته په قهر دی او پر هغوی پېرزوینه لري. دلته ډېر توند او په خېزو روان دی، هلته غلی او آرام بهېږي. دلته کوږ ووږ، ځي او هلته مجرا بدلوي. هلته په خپله ټاکلې لاره روان دی او بې لارې نه ځي.

په رښتیا چې سیند دلته ډېر ورانی کوي او هلته د یوه نظام او قانون تابع دی چې ورانی ته یې نه پرېږدي.

زموږ ګناه د سیند پرغاړه ده!

سیند له موږ نه ډېر څه وړي دي او ډېر یې رانه وژلي دي. دا سیند خوني سیند دی او له موږ سره یې زړه دښمني ده. څو ځله یې زموږ کورونه وران کړي او آباد پټي یې رانه په وارو وارو وړي دي.

زموږ ټوله ګناه د سیند په غاړه ده!

سیند زورور دی او پر موږ باندې هر وخت ظلم او تېری کوي.

آه! موږ څومره ناپوه یوچې دغه راز فکر کوو او په خپله ګناه نه پوهېږو. موږ خپله ګناه د سیند په غاړه اچوو.

د سیند په غاړه خو موږ پراته یو، په رښتیا چې دا زموږ ګناه ده، د سیند نه ده.

سیند له چا سره د ښمني نه لري.

سیند هر تږي ته اوبه ورکوي او د هر چا خیرنې جامې پاکوي.

سیند پوخ کار غواړي او پاخه بندونه ورته په کار دي.

که زموږ کار پوخ وای او زموږ بندونه پاخه وای، زموږ ویالې نه وچېدې او زموږ پټي اوبو نه وړل.

موږ د سیند په بندوبست پوه نه شو او له سیند نه مو کار وانخیست.

دا سیند د ژوند او حیات سیند دی.

په ده کې د ورانۍ او ودانۍ دواړه قوتونه موجود دي.

سیند د هر چا ظرف او استعداد ته ګوري، هغومره اوبه ورکوي.

د منګي خاوند او د منګوټي خاوند ته سیند برابره برخه نه ورکوي او نه وړو لښتیو ته د ویالو په اندازه څه ورکولی شي.

سیند د هر چا کار ته ګوري او هغسې ورسره کوي، یعنې خام بندونه ورانوي او پاخه بند ته ځان تسلیموي.

هغه څوک چې د ژوندانه سیند په خپل سر پرېږدي او یوه معینه مجراء ورته نشي ټاکلی، له ژوند نه استفاده نشي کولی.

(ګل پاچا الفت _ غوره نثرونه)

گل پاچا الفت:

د میرسیدجان پاچا زوی و. په (١٢٨٧) لمریز کال د لغمان د عزیزخان کڅ په سیمې کې زېږېدلی و. د پښتو ژبې پیاوړی لیکوال، شاعر، علمي او فرهنگي شخصیت تېر شوی. کلونه کلونه یې د هېواد په علمي فرهنگي ادارو کې د علمي غړي، لیکوال، مدیر او لوی رئیس او د کابل پوهنتون د ادبیاتو، حقوقو او سیاسي علومو د پوهنځیو د استاد په توگه دنده سرته رسولې ده. څو دورې یې په ملي شورا کې د ننگرهار او لغمان د خلکو د ټاکل شوي استازي او وکیل په توگه هم کار کړی دی.

پر (١٣٥٦) لمریز کال د لیندۍ د میاشتې په (٢٦مه) نېټه په کابل کې مړ شو او د لغمان د عزیزخان کڅ په هدیره کې خاورو ته سپارل شوی دی. د گل پاچا الفت په مطبوعاتو کې په سلگونو مقالو سربېره په لسگونو ځانگړي علمي، ادبي منظوم او منثور کتابونه هم چاپ شوي دي. د بېلگې په توگه یې غوره نثرونه، غوره شعرونه، لیکوالي، پښتو سندرې، لوړ خیالونه او ژور فکرونه او ادبي بحثونه یادوو.

د متن لنډیز:

لیکوال په دې ادبي ټوټه کې په ډېره خوږه ادبي ژبه د یوه لوی سیند یادونه کوي چې زموږ د هېواد او یوه بل گاونډي هېواد تر منځ بهېږي، خو موږ ورڅخه د خپلې بې علمۍ او بې کارۍ له امله هېڅ گټه نشو اخیستلای، ځمکې مو شاړې او سپېرې پرتې دي. کال په کال چې سیند توناني کېږي، نو زموږ خواته ډېرې ځمکې او کورونه وړي، خو په هغه بله خوا کې خلکوته د هغوی د کار او زیار په نتیجه کې ډېر گټور واقع شوی. د اوبو او برېښنا بندونه یې پرې جوړ کړل، ځمکې یې پرې خړوبې کړي او د ودانۍ او سمسورتیا لامل گرځېدلی دی.

وروسته بیا لیکوال همدغه سیند له انساني ژوند سره تشبیه کوي او دا وایي چې ژوند یو الهي نعمت دی، دا په خلکو پورې اړه لري چې له دغه نعمت څخه څه ډول استفاده کوي. په ښو چارو کې یې تېروي، که په بدو او ناوړو چارو کې.



## فعالیتونه

۱ـ ښوونکی دې متن ولولي، اصلي معنا او مفهوم دې زده کوونکو ته ووايي. ستونزمنې کلمې دې له معنا سره پر تختې ولیکي.

۲ـ زده کوونکي دې تختې ته وروبولي چې پر تختې لیکل شوې کلمې په مناسبو جملو کې وکاروي، ښوونکی دې د اړتیا پرمهال ورسره مرسته وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن یو یو پرګراف نورو ټولګیوالو ته ولولي. ښوونکی دې د اړتیا پر مهال ورسره مرسته وکړي.

٤ـ زده کوونکي دې په درو ډلو ووېشل شي، یوه ډله دې په متن کې د عربي کلمې، بله دې دري کلمې او دریمه ډله دې سوچه پښتو کلمې په نښه کړي. د هرې ډلې استازی دې د خپلې ډلې په نښه کړې کلمې پر تختې ولیکي.

٥ـ ښوونکی دې زده کوونکي په نوبت سره تختې ته ور وبولي چې هغه په نښه کړې عربي، دري او پښتو کلمې معنا کړي. ښوونکی دې د اړتیا پر مهال ورسره مرسته وکړي. زده کوونکي دې هغه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

٦ـ زده کوونکي دې وګومارل شي چې متن یو ځل بیا په ډېر غور ولولي او په هغه کې راغلي ادات دې په نښه کړي. یو یو دې خپل په نښه کړي ادات ووايي، ښوونکی دې له هغو څخه یو ګډ لست جوړ او پر تختې دې یې ولیکي.

۷ـ زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته وروبلل شي چې د دې متن مفهوم په لنډو عبارتونو نورو ټولګیوالو ته ووايي.

۸ـ په لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- سیند ولې یوه خوا وړله او هغې بلې خوا ته یې زیان نه شو اړولی؟
- ولې د سیند یوې خوا ته ځمکې شاړې او دښتې پرتې او پر هغه بله خوا یې باغونه او سمسورې کروندې وې؟
- آیا خلک پر حقه وو چې له سیند څخه ګیله وکړي چې دوی ته زیان رسوي؟
- موږ څنګه کولای شو د خپل هېواد له سیندونو څخه ګټه واخلو؟
- د سیندونو مهار کېدل امکان لري؟
- د سیند له اوبو څخه په کومو برخو کې کار اخیستلای شو؟
- لیکوال د انسان ژوند له سیند سره تشبیه کړی دی، د شباهت وجه یې څه ده؟
- له ژوند څخه باید څه ډول ګټه واخلو؟
- که څوک د ژوندانه بهیر د سیند د اوبو په څېر په خپل سر پرېږدي، څه ډول پایلې به ولري؟
- له دې لوست څخه مو څه پند او انتباه واخیستله؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د کوم لیکوال دغه ډول د ادبي نثر بېلګه او یا دې په خپله یو ادبي نثر ولیکي او هغه دې د پښتو لوست په راتلونکي ساعت کې نورو ټولګیوالو ته ولولي.

# محاوره

## «د انګلیسي ژبې د زده کړې د کورسونو په هکله خبرې اترې»




ـ تاسې له پښتو او دري پرته په نورو کومو ژبو پوهېږئ؟

ـ په کومه بهرنۍ ژبې خبرې اترې او لیکل کولای شئ؟

ـ د بهرنیو ژبو زده کړه څه ګټه لري؟

وايي، که څوک په یوه ژبه وپوهېږي، یو تن دی، که په دوو وپوهېږي، دوه تنه او که په درو وپوهېږي، دري تنه دي. همدغسې چې یو څوک هر څومره په ډېرو ژبو وپوهېږي په هماغه اندازه یې د پوهې کچه لوړه او شخصیت یې په علمي او ټولنیز لحاظ له اهمیت څخه برخمن کېږي.

په دې لوست کې مو درته د ژبې د زده کړې او په کورسونو کې د شمولیت په اړه یوه محاوره ترتیب کړې ده. دا په پښتو ژبه کې ستاسې د خبرواترو کولو ځواك هم پیاوړی کوي او هم د نوو کلماتو له زده کړې سره سره په کورسونو کې د شمولیت خبرې اترې در زده کوي.

جمال: او هو میونده، اوس خو ښوونځي ته د تگ وخت هم نه دی، چېرته روان یې چې کتابونه دې په لاس کې دي؟

میوند: جماله، ستړی مه شې!

جمال: خوار مه شې.

میوند: دا د ښوونځي کتابونه نه دي، د انگلیسي ژبې د زده کړې کورس ته ورځم، انگلیسي زده کوم.

جمال: زه خووایم چې ځنگه دې داسې بې وخته کتابونه در سره اخیستي او روان یې.

میوند: کورسونه خو د ښوونځي په وخت کې نه وي، سهار او مازدیگر وي، ته هم کولای شې کورس ووایې.

جمال: پرېږده بابا، د ښوونځي کتابونه دې چېرته سم یاد کړل چې اوس لا نورې ژبې زده کوې.

میوند: و ساده گله! خو په ښوونځي کې هم راته نورې ژبې وایي، دا هم د ښوونځي مضمونونه دي کنه.

جمال: خو بس دی، همالته ښوونځي کې یې زده کوو کنه، نور ورته څه حاجت دی.

میوند: ستا خبره سمه ده، په ښوونځي کې یې هم لولو، خو که په کورس کې یې زده کړو، نو ښه به مو زده شي، بیا به د ښوونځي تر پایه پورې د ژبو په زده کړه کې ستونزه ونه لرو.

جمال: میونده! ستا هم ډېرې یادې دي، سر ورپسې مه خوږوه!

میوند: نه، نه جمال جانه! دا خبره به نه کوې، د هرې بهرنۍ ژبې زده کول ډېره گټه لري.

جمال: ښه چې زده یې کړو، نو څه گټه لري؟

میوند: گټه خو یې داده چې یو خو به دې یوه بهرنۍ ژبه زده کړې وي، د هماغې ژبې له ویونکي سره به پرې خبرې کوې او هم به په هماغه ژبه کې مطالعه کوې.

جمال: نو انگلیسي خو د ټولې دنیا د خلکو ژبه نه ده کنه؟

میوند: ستا خبره سمه ده، انگلیسي د ټولې دنیا د خلکو ژبه نه ده، خو نن سبا په ټوله دنیا کې ډېر خلک په انگلیسي پوهېږي.

جمال: نو انگلیسي دومره اهمیت پیدا کړی چې د ټولې دنیا ډېر خلك پرې پوهېږي.

میوند: هو بالکل همدغسې ده، انگلیسي نن سبا د علم ژبه ده، په انگلیسی ژبه کې د ټولو علومو په اړه پوهانو کتابونه لیکلي دي، نو هر څوك چې په هره برخه کې معلوماتو ته اړتیا ولري، په انگلیسي کتابونو کې یې پیدا کولای شي.

جمال: لکه څه ډول معلومات، ته خو لږ معلومات راکړه.

میوند: ښه راته غوږ شه: لکه د ساینس، کمپیوټر، جغرافیې، تاریخ، اروپوهنې، انجینرۍ، طب، ژورنالیزم، ادبیات، ... . څه به درته ووایم خلك وایي چې د هرڅه په اړه په انگلیسي ژبه کې معلومات شته.

جمال: یاره میونده رښتیا دې وویل، چې دومره معلومات په انگلیسي ژبه کې شته، دا خو په رښتیا چې یا دول یې ضروري خبره ده.

میوند: جمال جانه! د انگلیسي او نورو بهرنیو ژبو زده کول بله داگټه هم لري چې له هماغه ژبو څخه د هر ډول علومو کتابونه خلك خپلو ژبو ته را ژباړلای شي.

جمال: یعنې چې که موږ انگلیسي زده کړو، خپلې پښتو ژبې ته به ډېر کتابونه را ترجمه کړو.

میوند: بالکل چې له دې کار سره به زموږ په ژبه کې خلکو ته علمي معلومات ډېر شي اوله بل لوري به مو خپلې ژبې او خلکو ته خدمت کړی وي.

جمال: په رښتیا چې د نورو ژبو زده کول ډېر گټور کار دی.

میوند: جماله! بله خبره داده چې نن سبا خو د دنیا په پوهنتونونو کې زده کړې هم په انگلیسي ژبه دي. که انگلیسي مو زده وي، هلته به مو ډېرې ستونزې حل وي.

جمال: میونده: ما اورېدلي چې نن سبا کمپیوټر او نور تخنیکي وسایل ټول په انگلیسي ژبه دي، نو که په کوم دفتر کې کار کوو، حتماً مو باید کمپیوټر زده وي او ورسره انگلیسي ژبه چې په کمپیوټر باندې وپوهېږو.

میوند: بالکل همدغسې ده، ما همدغه خبرې په پام کې ونیولې. زه ورغلم چې په کورس

کي ځان شامل کړم.

جمال: زه هم غواړم د انګلیسي ژبې کورس ووایم، خو ښه نه پوهېږم چې څنګه ځان شامل کړم.

میوند: د ا خو آسانه خبره ده، د کورس ادارې ته به ورشو، د کورس مدیر به دې شامل کړي.

جمال: بس همدومره خبره ده؟

میوند: نه، کورس به درنه د درس ویلو په مقابل کې یوه اندازه پیسې واخلي، نوم به دې په حاضرۍ کې ولیکي او شامل به شې له خیره.

جمال: ښه سمه ده، پیسې هم را سره تیارې په جیب کې شته، خو زه او ته به په یوه ټولګي کې درس وایو.

میوند: نه نه، جماله، ته له ما سره په یوه ټولګي کې درس نه شي ویلای.

جمال: ولې؟ ته نه غواړې چې زه له تا سره په یوه ټولګي کې درس واویم؟

میوند: نه، نه دا خبره نه ده، ته باید په کورس کې انګلیسي له لومړي ټولګي نه شروع کړې چې سمه دې زده شي. ما خو مخکې شروع کړې ده.

جمال: خو سمه ده، له اول ټولګي نه یې شروع کوم، تا به هم همدغسې کړي وي کنه....

میوند: هو ما هم له لومړي ټولګي نه پیل کړه، زه اوس په دویم کتاب یا دویم ټولګي کې یم، نو ځکه مې تاته وویل چې ته له ما سره په یوه ټولګي کې درس نه شې ویلای.

جمال: ښه ښه اوس وپوهېدم، یعنې چې ته مخکې یې.

میوند: هو بالکل همدغسې ده، زما پنځمه شپږمه میاشت ده، په دې کورس کې.

جمال: سمه ده، هېڅ خبره نه ده، زه به په لومړي ټولګي کې ځان شامل کړم.

میوند: راځه نو چې اوس د کورس ادارې ته ورشو، چې مدیر صاحب دې شامل کړي.

جمال: (په خوښۍ) درځه چې ورشو.

د متن لنډيز:

د ژبې د زده کړې مهارتونه څلور دي: اورېدل، خبرې کول، لوستل او ليکل، خبرې اترې د ژبې د زده کړې يو مهم مهارت دی چې د دې مهارت په عملي کولو سره د خبرو کولو ځواک غښتلی کېږي او د لغاتو زېرمه زياتېږي. زده کوونکو ته په کار ده چې له خپلو ټولګيوالو سره تل خبرې اترې وکړي.

په خبرو کې پر خپلو تېروتنو ونه شرمېږي او يو د بل تېروتنه اصلاح کړي.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي. ستونزمن لغات دې په نښه او له ښوونکي دې د هغو معنا وپوښتي.

۲ـ ښوونکی دې هغه ستونزمنې کلمې په خپله د زده کوونکو په مرسته او که هغوی يې نشي کولای په خپله دې حل کړي. زده کوونکي دې هغه په خپلو کتابچو کې وليکي.

۳ـ يو يو زده کوونکی دې د ټولګيوالو په وړاندې د يوې بهرنۍ ژبې د اهميت او د دې په هکله چې دې به په خپله کومې بهرنۍ ژبې زده کوي، خبرې وکړي. ښوونکی دې د اړتيا پر مهال د هغوی د خبرو د سمون لپاره مرسته ورسره وکړي.

٤ـ دوه دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته وروبلل شي، يو دې د جمال او بل دې د ميوند د خبرو تمثيل وکړي. دا لړۍ دې په ټول ټولګي کې پلې کړای شي.

۵ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د ټولګي مخې ته ورشي او د لوست مفهوم دې په خپلو الفاظو نورو ټولګيوالو ته ووايي.

۶ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- د يوې بهرنۍ ژبې زده کړه څه ارزښت لري؟
- خبرې اترې د ژبې په زده کړه کې څه تاثير لري؟
- د ژبې په زده کړه کې له خبرو اترو پرته زده کوونکي ته نور څه کول په کار دي؟
- د يوې بهرنۍ ژبې له زده کړې نه مورږ کومې گټې اخيستلای شو؟
- د يوې بهرنۍ ژبې زده کړه ستاسې د معلوماتو په زياتوالي کې څرنگه او څه ډول ارزښت لري؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د کورنۍ دندې په توگه د بهرنۍ ژبې د زده کړې او اهميت په هکله څو کرښې مقاله وليکي او په راتلونکي درسي پښتو ساعت کې دې هغه نورو زده کوونکو ته ولولي.

چې دروغ تـر خولې وبـاسـي کله خوله ده
چې رښتيا تر خولې وباسي خوله هغه ده

× × ×

چـې کـــردار دې لـه گفتاره ســره سـم نـه دی
تش گفتار واړه په ځـان باندې نفـــرين دی
((خوشحال خان خټک))

# فکر او عمل



ـ څوک ویلای شي چې فکر څه ته وايي؟

ـ فکر او عمل څه اړیکې او رابطه سره لري؟

ـ د کړنې یا عمل لپاره فکر څومره ضروري دی؟

د فکر لغوي معنا ذهني بوختیا، هاند او هڅه ده. په اصطلاح کې د یوه څه د موندلو او پرې پوهېدلو لپاره د ذهني ځواک او قوت کارولو ته فکر وايي.

عمل کړنې یا د یوه کار او فعالیت سرته رسولو ته وايي.

د هرې چارې تر سره کولو لپاره لومړی پر هغې فکر کول ضروري دی او همدارنګه که فکر ته د عمل جامه وانه غوستل شي یا په عمل کې پلی نشي، ارزښت او اهمیت نشي پیدا کولای.

په دې لوست کې مو د پوهاند استاد رښتین یوه ادبي لیکنه د ((فکر او عمل)) تر سرلیک لاندې خوښه کړې چې په ادبي ژبه د فکر او عمل د خپل منځیو اړیکو او د دواړو د پېژندنې په هکله ډېرې د پند او خوند خبرې لري.

ځوک فکر کوي، مګر کار یې له لاسه نه کېږي.
ځینې په کار کولو کې تکړه وي، مګر د عمل په ډګر کې هېڅ نه وي.
ځینې د کار او عمل مېړني وي، مګر په سوچ او تدبیر کې بې کاره وي.
چاته یوازې فکر کول ښه ښکاري او د چا په نظر کې د عمل او کار کولو صفت لویه ښېګڼه وي.
ځوک خپل ډېر قېمتي وخت په سوچ او جاج تېروي او ځینې په پټه خوله په غښتلیو لېچو له کار کولو څخه ډېر خوند اخلي.
چاته ډېر سوچ او فکر کول خوند ورکوي او ځوک د کار کولو په زور د ژوندانه په سیند کې لامبو وهي.
ځوک تش د هوا د باد پیمانه کوي او ځینې د حقیقت په تله کې د ژوند مرغلرې تلي.
ځوک په خبرو اترو خپل بازار ګرمول غواړي او ځوک د کار په ارزښتناکو مرغلرو د نړۍ بازار ښایسته کوي.
لنډه دا چې ځوک د فکر ملګري او ځوک د عمل مینان دي.
لیکن په واقعیت کې د انسان کامل والی په فکر او عمل دواړو پورې تړلی دی. د ژوندانه تله هله برابره او سمه درېږي چې دواړه پلې یې په تول کې یو رنګ وي. یعنې په یوه اندازه په یوه پله کې فکر او په بل کې عمل وي.
که چا د ژوندانه دغه مقیاس او کچ مېچ په لاسو ونیو، یعنې هم یې فکر وکړ او هم یې د عمل جامه ورواغوستله، نو کامیابي د هغه پښې ښکلوي.
د کامیابۍ راز په فکر او عمل دواړو کې پروت وي. ښایي چې هر ځوک په تېره بیا مشران د فکر او یا کولو او عمل تله په لاس کې ونیسي او د ژوندانه لوی او واړه کارونه پرې وتلي. د نړۍ ډېر نومیالي کسان او د ملتونو او قومونو مشران د فکر او عمل په ګاڼه یو شان ښایسته وو. دوی هم فکر کاوه او هم یې د عمل لباس پر غاړه و.
فکر او عمل دوه غبرګوني ورونه دي. دواړه په شریکه د ژوندانه هر ډول درونـد پېټی پورته کولای شي.
که له فکر سره عمل نه وي، نو تش تېکی ګڼل کېږي او که له عمل سره فکر نه وي، نو

د بې کاره او پخې توري مثال لري. فکر او عمل د انسانیت د تکمیل پخې او اساسي ستنې دي. فکر او عمل د الوتلو قوي وزرونه دي، فکر او عمل د سعادت او نېکمرغۍ پاخه او کلک بنسټونه (تهدابونه) دي.

فکر او عمل د نجات او ژغورنې قوي متې دي. بې فکره عمل او کار بې نتیجې ستړیا او بې مطلبه لامبو ده او بې عمله فکر د خوب دنیا جوړول او خوشې دماغ ستړی کول دي.

که څوک غواړي د ژوندانه له خوږو څخه خوند او لذت واخلي او نېکمرغي يې په برخه شي، ښايي چې هم فکر وکړي او هم خپل فکر ته د عمل جامه ور واغوندي. دغه ده په نړۍ کې د کامیابۍ ډېره غوره او ګټوره لاره!

(پوهاند رښتین ــ د ژوند پلوشې)

پوهاند صدیق الله رښتین په (۱۲۹۸) لمریز کال کې زېږېدلی او په (۱۳۷۷) لمریز کال کې مړ دی. د پښتو ژبې پیاوړی لیکوال او ادیبوه و. کلونه يې د ((پښتو ټولنې)) د ریاست او مشرۍ چارې سرته رسولې، سربېره پردې د کابل پوهنتون د ادبیاتو د پوهنځي استاد و. له دغې لارې يې د وطن د اولادونو په روزنې کې ستره ونډه تر سره کړې ده. په سلګونو مقالې يې د هېواد په مطبوعاتو کې خپرې شوې او تر (۷۰) زیات علمي، ادبي او معلوماتي کتابونه يې چاپ شوي دي. د ځینو نومونه يې دا دي: د پښتو ادب تاریخ، پښتو ګرامر، ژبدود، د ژوند پلوشې، د ښکلا پلوشې، پښتو نثر هنداره او پښتني لاربنود.

د متن لنډیز:

فکر او کار یا عمل کول دواړه یو له بله لازمي او ضروري دي. یوازې فکر او سوچ کول چې عمل ورسره نه وي، څه ګټه نه لري او همدارنګه بې فکره او بې هدفه کار هسې خپل ځان ستړی کول دي، هېڅ ګټه نه لري. موږ باید فکر او عمل دواړه سره ملګري کړو، د هرې چارې د سرته رسولو لپاره لومړی ښه فکر وکړو او بیا هغه سرته ورسوو. د انسان د نېکمرغۍ او بریالیتوب راز په همدې کې نغښتی دی چې خپل هر کار په پوره فکر او تدبیر سره وکړي او هغه فکر ته د عمل جامه وروا‌غوندي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ښه په غور سره ولولي او په هغه کې دې هغه لغتونه او کلمې په نښه کړي چې په معنا يې نه پوهېږي.

۲ـ زده کوونکي دې په وار سره پاڅېږي او هغه ستونزمنې کلمې دې ووايي چې په نښه کړې يې دي، ښوونکی دې هغه پر زده کوونکو او يا په خپله معنا کړي.

۳ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته ورشي او د متن مفهوم دې په خپلو الفاظو نورو ټولګيوالو ته ووايي.

په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې کچه وارزول شي:

- فکر کول څه ته وايي؟
- کار او عمل څه شی دی؟
- بې فکره کار څه زيانونه لري؟
- فکر کول او بيا کار کول څه ګټه لري؟
- خپل فکر ته څنګه د عمل جامه واغوندو؟



## کورنۍ دنده

ښوونکی دې دا لاندې بيت زده کوونکو ته ورکړي چې د هغې د معنا او مفهوم په هکله لږ تر لږه پنځه کرښې په کور کې وليکي او په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګيوالو ته ولولي:

بې له فکره چې څوک کار کړي خوشې زيار کړي
چې بې فکره کړي کارونه ځان به خوار کړي

# د پاچا خان تعليمي لاړښوونې



ـ د عبدالغفارخان، پاچا خان او فخر افغان په نوم څوک پېژنئ؟

ـ د هغه په اړه څه معلومات لرئ؟

عبدالغفار خان چې په پاچا خان مشهور او د ((فخر افغان)) په وياړلي لقب لمانځل شوی، په پښتونخوا کې د پښتون ولس له نوميالیو ملي او سياسي مشرانو څخه و. کلونه کلونه يې د خپل ولس د آزادۍ لپاره د انګرېزي ښکېلاک په وړاندې مبارزه کړې ده. د زندان ستونزې او جلا وطنی يې ګاللې دي.

په دې لوست کې به د نومورې ښوونيزې روز نيزې لاړښوونې ولولو او پر هغو هلوځلو به يې بحث وکړو چې د خپل ولس د ښوونې او روزنې لپاره يې ترسره کړې دي.

عبدالغفار خان (پاچا خان) د پښتونخوا د پېښور د هشنغر د اتمانزو د سیمې د بهرام خان په کور کې هغه مهال (۱۸۹۰م.) سترګې نړۍ ته پرانیستي چې د هند پر لویه وچه او د پښتونخوا پر سیمو د انګرېزانو ښکېلاکي منګولې ښخې وې.

عبدالغفار خان د استعمار نادودې او زور زیاتی هم په خپلو سترګو لیده او د خپل ولس ځپلی حالت هم ورمعلوم و. هغه دا درک کړې وه چې ټولنه یې بیسواده او له لیک لوست نه بې برخې ده، ترڅو چې دوی د علم او پوهې په وسله سنبال نه شي، نه خپل ځان پېژندلای شي او نه خپل حقونه. هغه د دې کار لپاره د مدرسو په جوړولو پیل وکړ او لومړنۍ مدرسه یې په (۱۹۱۰م.) کال د مولوي عبدالعزیز په مرسته جوړه کړه او بیا د مدرسو جوړولو لړۍ ډېره پراخه شوه. څو کاله وروسته یې یو بل عملي اقدام ته لاس اوږد کړ، هغه دا چې: لومړی یې د خپلې لارې همفکره ملګري پیدا کړل او بیا یې په (۱۹۲۱م.) کال د ((انجمن اصلاح الافاغنه)) په نوم یو ټولنیز، سیاسي، اصلاحي غورځنګ او ډله رامنځته کړه.

دې ډلې د خلکو د ویښولواو پوهولو لپاره هلې ځلې پیل کړې. لومړی یې په اتمانزو کې د ((آزاد سکول)) په نامه یو ښوونځی جوړ کړ. د هغه لپاره یې ښوونکي او زده‌کوونکي پیدا کړل. د دې ښوونځي جوړولو موخه داوه چې د ولس اولادونه پکې لیک لوست زده کړي او هغوی باسواده شي. د انجمن د تګلارې له مخې په دې ښوونځي کې دیني او عصري علوم دواړه زده کوونکو ته ښودل کېدل.

دغه وخت ښوونځي ته د استادانو له پیدا کولو څخه د زده کوونکو پیدا کول ډېر ستونزمن وو، ځکه چې د انګرېزانو د تبلیغ په وسیله په عصري ښوونځیو کې له زده‌کړې نه خلکو ډېره کرکه کوله، نو د انجمن اصلاح الافاغنه مشرانو خپل زامن په هغه کې شامل کړل. د عبدالغفارخان زامن عبدالغني خان او ولي خان د دې ښوونځیو له لومړنیو زده کوونکو څخه دي.

پاچا خان په خپلو خاطراتو ((زما ژوند او مبارزه)) کې لیکي چې: ((انګرېزانو زموږ له ښوونځیو څخه کرکه کوله چې موږ به نوي ښوونکي مقرر کړل، نو هڅه به یې کوله چې هغوی تهدید او ووېروي. که چېرې به د دوی تهدید بې اغېزې و، نو بیا به یې هغوی د ښو

تنخواوو په ورکولو باندې له موږ نه لرې کول.

انګرېزانو د پښتنو دغه علمي او تعليمي حرکت ډېر خطرناک ګاڼه، نو ځکه يې لومړی پاچا خان وګوا ښه او بيا يې د ښوونځي ځينې ښوونکي او په خپله پاچاخان بنديان کړل.

دغه علمي تعليمي حرکت ډېر ژر وده او پرمختيا وکړه. د پښتونخوا په ډېرو سيمو کې د هلکانو او نجونو ښوونځي جوړ شول. د ليک لوست زده کړه د عبدالغفارخان تر مشرۍ لاندې د همدې غور ځنګ په برکت عامه شوه. پاچاخان ليکلي دي چې د خلکو له ليک لوست سره مينه زياته شوه. ډلې ډلې خلک راتلل او ويل به يې چې زموږ په کلي کې ښوونځی جوړ کړئ.

د ښوونيزو روزنيزو چارو په لړ کې د پاچاخان بل مهم کار دا و چې د مخه په پښتني ټولنه کې د کتاب او اخبار لوستلو عموميت نه درلود، نو يې خلکو ته د اخبار او کتاب د مطالعې سپارښتنه کوله. د ((پښتون)) په نامه يې يوه مجله هم خپره کړه، دا مجله چې تر اوسه خپرېږي، د خلکو په ذهني بيدارۍ او پوهاوي کې يې ډېره ستره ونډه لرلې ده.

د غفارخان په تعليمي کارونو کې يو دا هم و چې خلک به يې د کار او کسب د زده کړې لپاره هڅول. د سوداګرۍ او د کرنې ځينې چارې، لکه باغواني او نورې چارې چې دا وخت خلکو ته د شرم وړ کارونه ښکارېدل. د دې ترڅنګ چې خلکو ته يې د هغو ګټې ښودلې، په خپله به يې دا ډول کسبونه تر سره کول چې نور ورته مخه کړي. هغه و چې په ولس کې خلکو د ده په پيروۍ بېلا بېل کسبونه او کارونه پيل کړل او چې د هغو په ګټه او ښېګڼه پوه شول، نو عموميت يې پيدا کړ. پاچاخان خلکو ته د هغو ناوړه دودونو د پرېښودلو په اړه لارښوونه کوله چې مالي او ټولنيز زيانونه لري، لکه ولور، په ودونو او مړو کې بې ځايه لګښتونه. خلکو ته به يې ورښودل چې د ښځو حقونو ته درناوی وکړي او هغه ومني. د دې چارو ښېګڼې به يې په خپله عملاً خلکو ته ورښودلې. نوموړي به ويل: ((خدای خو نر او ښځه د دنيا د آبادۍ دوه ملګري پيدا کړي دي او د بشريت د ګاډۍ دا دوه پايې دي. دا ګاډۍ په يوه پايه نشي چلېدی)).

تر دغه وخته په پښتني ټولنه کې د نجونو زده کړه یوه لویه ستونزه وه. نجونو اجازه نه درلوده چې د زده کړې لپاره ښوونځي ته ولاړې شي. پاچاخان په خپلو خاطراتو کې لیکي: ((اول ما خپله لور په ښوونځي کې داخله کړه او په دې کار باندې زما خپلوان، دوستان او زما خسرګنۍ هم له ما نه خفه شول. وروسته بیا لویو لویو خانانو خپلې لورګانې په ښوونځیو کې داخلې کړې او په دې توګه وروورو د نجونو په زده کړه بندیز کم شو))

پر (۱۹۲۹م.) کال چې د ا نجمن اصلاح افاغنه نوم په ((خدایي خدمتګار تحریک)) بدل شو، د پاچاخان تر مشرۍ لاندې دغه تحریک خپلو علمي، تعلیمي، ټولنیزو او اصلاحي چارو تر سره کولو ته دوام ورکړ. دغه نومیالي مشر به تل خلکو ته ویل چې: ((د خدای خدمت ته ملا وتړئ)). هغه به دا څرګندوله: معلومه ده چې خدایﷻ د بنده خدمت ته اړ نه دی، خو د خدایﷻ د مخلوق خدمت د خدای په لاره کې خدمت دی. فخر افغان بابا دغه خدمت ته له هر څه نه لومړیتوب ورکاوه. خپل ټول ژوند یې د خلکو د پوهونې او ټولنې د سمون لپاره په همدغو اصلاحي او ښوونیزو روزنیزو خدمتونو کې تېر کړ. کلونه کلونه یې د زندان او جلا وطنۍ ستونزې وګاللې، د خپل ولس د رښتیني خدمتګارۍ ویاړ یې په برخه شو.

د متن لنډیز:

پاچاخان (عبدالغفارخان) په پښتونخوا کې د پښتون ولس یو نومیالی مشر و. داسې مهال زیږېدلی و چې په پښتونخوا باندې د انګرېزي ښکېلاک (استعمار) منګولې ښخې او پر خلکو یې ډول ډول زور زیاتی کاوه. پاچاخان چې رالوی شو، د لوړ ملي احساس او بیداره شعور خښتن و. غوښتل یې چې خپل قوم او ولس د ښکېلاک له ظلم او زوره

خلاص او خپلواکي ترلاسه کړي. هغه دا درک کړې وه چې په قوم کې يې بېسوادي خپره ده او تر څو د علم او پوهې په وسله سنبال نه شي، نه خپل ځان پېژندلای شي او نه خپل حقونه. نو لومړی يې د مدرسو په جوړولو پيل وکړ. ځينې مدرسې يې جوړې کړې او پښتانه يې علم او پوهې ته وهڅول، بيا يې د نورو ملګرو په مرسته د انجمن اصلاح افاغنه په نوم يو ټولنيز اصلاحي او سياسي غورځنګ رامنځته کړ. د دغه غورځنګ له لارې يې لومړی په خپله سيمه اتمانزو او بيا په نوره پښتونخوا کې عصري ښوونځي جوړ کړل او په خپل قوم کې يې ښوونه او روزنه عامه کړه. د دې ترڅنګ يې خلک مطالعې، کتاب او اخبار لوستلو ته هڅول، د پښتون په نامه يې په پښتو ژبه د يوې مجلې خپرول پيل کړل. د نجونو د زده کړې لپاره يې ښوونځي جوړکړل. خلکو ته يې د سوداګرۍ او نورو کسبونو د زده کړې لارښوونې او سپارښتنې کولې او هغوی ته يې عملاً د دې چارو ښېګڼې ښودلې. دغسې يې د خپل ولس د ښوونې او روزنې لپاره نه ستړې کېدونکې هلې ځلې وکړې، ځکه يې نو د خلکو او ولس د رښتينې خدمتګارۍ وياړ په برخه شوی او د ((فخرافغان)) په درانه لقب يې نمانځلی دی.

### فعاليتونه

۱ــ زده کوونکي دې د لوست متن په پټه خوله له ځان سره ولولي او ستونزمنې کلمې يې دې په نښه کړي.

۲ــ ښوونکی دې د زده کوونکو په نښه شوې کلمې له تکرار پرته د لست په ډول پر تختې وليکي. کلمې دې په زده کوونکو معنا کړي، هغه لغتونه چې هغوی يې معنا کولای نشي، ښوونکی دې د هغو معنا پر تخته وليکي.

۳ــ زده کوونکي دې په وار سره د متن يوه يوه برخه ولولي، ښوونکی دې د اړتيا پر مهال

په سمه لوستنه کې ورسره مرسته وکړي.

٤ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګیوالو په وړاندې د متن مفهوم په خپلو الفاظو ووايي.

٥ـ زده کوونکي دې په وار سره تختې ته ولاړ شي او له معنا شوو لغتونو څخه دې یو یو په مناسبه جمله کې وکاروي.

٦ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې کچه وارزول شي:

- د پاچاخان اصلي نوم څه و؟
- د فخر افغان او یا پاچا خان لقبونه چا ورکړي دي؟
- پاچا خان څه ډول شخصیت و؟
- انګرېزانو ولې هغه بندي کړ؟
- پاچاخان ولې د خپل ولس د ښوونې او روزنې مسئلې ته ډېره پاملرنه وکړه؟
- هغه د ولس د اولادونو د ښوونې او روزنې لپاره لومړی څه وکړل؟
- د کارکسب زده کولو ته یې خلک څه ډول هڅول؟
- پاچاخان د کوم ټولنیز او سیاسي غورځنګ بنسټ ایښی و؟
- پاچاخان د نجونو د زده کړې په برخه کې څه وکړل؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلې سیمې د یوه علمي، فرهنګي یا یوه ټولنیز شخصیت د پېژندنې په اړه څو کرښې لیکنه وکړي او په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ولولي.

# متلـونه




ـ متلونه د څه لپاره ویل کېږي؟

ـ یو متل ووایئ، مقصد او د کارونې ځای یې په گوته کړئ.

متلونه د هرې ژبې په ولسي یا شفاهي ادبیاتو کې ارزښتمنه برخه جوړوي. متلونه په ژبه کې هغه پخې، خوږې خبرې یا لنډې ویناوې دي چې د ټولنیزو تجربو په لړ کې را منځته شوي وي. په دغو لنډو لنډو جملو کې ډېر لوی مفهوم بیان شوی او د یوې تجربې نتیجه پکې نغښتې وي.

په دې لوست کې د ولسي ادب دا مهم ډول در پېژنو:

متلونه د ولسي ادبستره او بډایه برخه ده. هغه پخې، خوږې او په تول پوره خبرې دي چې د یوې ژبې د ویونکو د ټولنیز ولسي ژوند له تجربو څخه زېږېدلې دي.

متلونه په عامه توګه ډېرې لنډې، خوږې خبرې دي. هر متل د استعمال لپاره خپل ځای لري. که بې مورده وکارول شي، اغېزه نه لري.

د یوې ژبې ویونکي، متلونه د خبرو اترو په ترڅ کې د خپلو خبرو د باوري کولو لپاره وایي. دغه پخې ویناوې د ویناوال د ادعا لپاره ډېر کلک ثبوت ګڼل کېږي. متل د خبرې رښتینوالی داسې ثابتوي چې بیا څوک ورڅخه انکار نشي کولای. د متلونو په ترڅ کې یو ولس د خپل ژوند تجربې له یوه نسل څخه بل ته لېږدوي.

د ژبې د جوړښت له مخې د متل متن، نظم وي که نثر، ډېر خوږ او معیاري وي.

متلونه د شکل له مخې په دوو ډولونو وېشل کېږي:

منظوم متلونه _ منثور متلونه

## ۱_ منظوم متلونه:

دا متلونه په نظم وي، معمولاً وزن او قافیه لري. دوه مسرۍ یا نیم بیتي وي، کله کله لومړۍ مسره یا نیم بیتی او کله بیا دویمه مسره تر لومړۍ اوږده وي.

د متلونو په دې ډول کې پر وزن او قافیې سربېره، تشبیه، استعارې، مجاز او کنایې هم کارول شوې وي. دا متلونه د خبرو په ترڅ کې په ډېر خواږه آهنګ او لهجه ویل کېږي.

منظوم متلونه د منثورو متلونو په پرتله ښه اوژر زده کېږي. یا څرنګه چې په نظم دي، تر ډېره وخته په ذهن او حافظه کې پاتې کېږي. داسې ښکاري چې د متلونو د عمر د اوږدېدلو او له یوه نه بل ته په اسانه او اغېزناکه توګه د لېږدېدلو لپاره دا کار شوی دی. د ځینو مشهورو شاعرانو د شعر ځینې بیتونه هم چې د ولس د خلکو ژبو ته پرېوتي، ډېر ویل شوي او لږو ډېر بدلون پکې راغلی، په متلونو اوښتي دي.

د منظومو متلونو څو بېلگې:

- خپله لاسه ـ گله لاسه
- په ژوندون مې قدر غواړه ـ چې مړ شم مه مې ژاړه
- ښه خوی به دې سلطان کړي ـ بد خوی به دې په ځان پورې حیران کړي
- پوره ـ ورک دې کړل دوه کوره
- د ځوانۍ یوه نشه وي ـ داسې نه چې همېشه وي
- آس لره ـ په لاس لره
- څه ور پناه ـ څه غر پناه
- چې تگ دې په غره دی ـ ناستی دې په څه دی
- چې په تمه د سپرو شي ـ هغه پاتې په مېرو شي
- خپله ژبه هم کلا ده ـ هم بلا
- بد به دې په زړه لرم ـ سلام به دې په خوله لرم
- اوړه دې په اوړه ـ منت دې پر څه

## ۲ـ منثور متلونه:

منثور متلونه په نثر دي. د دې متلونو شمېر په هرې ژبې کې له منظومو متلونو زیات وي. د متلونو دا ډول هم خپل ځانگړی آهنگ لري. په نثري متلونو کې ډېره خوږه ادبي ژبه کارول شوې او په یو څو کلمو کې ډېر لوی مفهوم پروت وي. دا خوږه او له حکمت نه ډکه خبره یا یوه ډېره لنډه جمله وي چې د ژبې ویونکي یې د خپلو خبرو په ترځ کې د خپلې وینا د ټینگښت یا د خپلې ادعا د ثبوت لپاره وایي.

هر منثور متل د جوړښت له مخې یوه لنډه، خو بشپړه جمله وي. دا لنډه جمله به د گرامر له مخې مبتدا او خبر دواړه لري.

منثور متلونه بېلابېل ډولونه لري چې ځینې یې کیسه ییز متلونه او نور عادي متلونه دي.

کیسه ییز متلونه هغه دي چې تر شا یې یوه کیسه یا پېښه پرته وي او دغه ویل شوی متل د هغه نچوړ یا نتیجه وي، لکه: ((چې خوب کوي، مېښه یې نر کټی زېږوي.))
عادي متلونه هغه دي چې د ټولنیز ژوند یوه تجربه پکې بیان شوې وي. دلته د دې ډول نثري متلونو څو بېلګې راوړو:

- د ښې غوښې ښه ښوروا وي.
- لاس چې مات شي، غاړې ته لوېږي.
- ځمکه هغه سوځي، چې اور پرې بلېږي.
- دنیا نولس ده، چا هم نه ده شل کړې.
- که غر لوړ دی، پر سر یې لار ده.
- له خپل ګلیم سره پښې غځوه.
- مال خپل ساته، ګاونډی غل مه نیسه.
- یاد به دې زه کړم ـ ښاد به دې خدای کړي.
- له بارانه تښتېدم، د ناوې لاندې مې شپه شوه.
- تیږه پر خپل ځای درنه وي.
- کوږ بار تر منزله نه رسېږي.
- نېکي وکړه، په اوبو کې یې واچوه.
- چې سر دې نه خوږېږي، داغ پرې مه ږده.
- د ډېرو امسا، د یوه سرې ګېډی.
- انګورو ته یې لاس نه رسېږي، وایي تروه دي.
- آزمویلی، بیا مه آزمویه.
- ړوند یو ځل خپله امسا ورکوي.
- پر یوه څپېړه دوه مخونه خوږېږي.

د متن لنډيز:

متلونه هغه پخې، خوږې او په تول تللې خبرې دي چې د ولس د ژوند له تجربو څخه را زېږېدلي او له يوه نسل څخه بل ته لېږدېدلي دي. متلونه خلك په خبرو اترو کې د خپلې ادعا د ثبوت لپاره وايي، خو هر متل د کارولو لپاره خپل ځای لري، که بې ځايه استعمال شي، اغېزه نه لري. متلونه هم په نظم کې وي او هم په نثر کې. هغه چې په نظم کې دي، وزن او قافيه لري او هغه چې په نثر کې دي، متن يې ډېر خوږ، ژبه يې ادبي او معياري وي. د جوړښت له مخې يوه لنډه، خو پوره جمله وي، د مبتدا او خبر دواړو برخې پکې وي.



## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن يوه يوه برخه د ټولګيوالو په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د اړتيا پر وخت له هغوی سره د سمې لوستنې لپاره مرسته وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې وګومارل شي چې متن په پټه خوله ولولي. ستونزمنې کلمې يا لغات دې په نښه کړي. يو يو دې خپل په نښه کړي لغات ووايي. ښوونکی دې له تکرار پرته د هغو مجموعي لست پر تختې وليکي. ځينې لغات دې په خپله پر زده کوونکو معنا کړي او هغه چې نه يې شي معنا کولای، ښوونکی دې د هغو معنا پر تختې وليکي.

۳ـ دوه دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته ورشي. يو دې د يوه متل متن ولولي، بل دې د هغه د استعمال ځای په ګوته کړي. ښوونکی دې د اړتيا پر مهال د متل پر ځای د استعمال مورد زده کوونکو ته وښيي.

٤ـ زده کوونکي دې یو یو په خپله خوښه پورته شي، که په متن کې له راغلو متلونو پرته یې کوم بل پښتو متل زده وي، هغه دې نورو ټولګیوالو ته ووایي.

٥ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې کچه وارزول شي:

- متل څه شی دی؟
- متل ولې خلک په خبرو کې استعمالوي؟
- متلونه په څو ډوله دي، نومونه یې واخلئ؟
- د منظوم او منثور متل ترمنځ څه توپیر دی؟
- دوه منظوم متلونه ووایاست.
- دوه منثور متلونه ووایاست.



## کورنی دنده

زده کوونکي دې د کورنی دندې په توګه په کور کې په دې لوست کې له راغلو متلونو پرته نور پنځه پنځه متلونه ولیکي. د پښتو لوست په راتلونکي ساعت کې دې هغه خپلو ټولګیوالو ته ولولي.

کـر د ګلو کـره چې سیمه دې ګـلـزار شي
اغـزي مه کـره په پښو کې به دې خار شي
کـوهـی مـه کـنه د بـل سـرې پـه لار کې
چیرې ستا بـه د کوهي پـه غـاړه لار شي
عبدالرحمٰن بابا





# محاوره

## د هېواد د لرغونو او تاریخي ځایونو په هکله خبرې اترې



ـ تاسې ته د هېواد کومه لرغونې او تاریخي ودانۍ معلومه ده؟

لرغونو او تاریخي ودانیو ته آبدات وایي. دغه ودانۍ ستر تاریخي ارزښت او اهمیت لري. دغه ډول ودانۍ یا ځایونه د یوه هېواد د خلکو ګډ فرهنګي میراث ګڼل کېږي. د ټول هېواد په وګړو پورې اړه لري. دولت او ولس باید د هغو ساتنې ته پوره پاملرنه وکړي.

په دې لوست کې مو تاسې زده کوونکو ته د هېواد د ځینو تاریخي ودانیو او ځایونو په اړه خبرې اترې راوړې چې هم به مو له دغو تاریخي ځایونو سره آشنا کړي او هم به مو په پښتو ژبه د خبرو اترو کولو ځواک پیاوړی کړي.

احمد: فیروزه: څو ورځې وړاندې مې یو کتاب ولوست.

فیروز: ښه، د څه شي کتاب و، څه یې په کې لیکلې وو؟

احمد: معلوماتي کتاب و. د بلخ د نهه گونبزي جومات په اړه په کې معلومات وو.

فیروز: ښه نو اوس ماته هم د همدغه جومات په باب لږ معلومات راکړه.

احمد: ولې نه، په دواړو سترگو، دغه نهه گونبزي جومات د ((مسجد حج پیاده)) په نامه هم یادېږي

فیروز: څومره ښه، خیر (دوه) نومونه لري، نو؟

احمد: هو دا جومات د بلخ ښار په جنوبي برخه کې له ښاره درې کیلومتره لرې پروت دی.

فیروز: یعنې د مزارشریف له ښاره درې کیلومتره لرې دی؟

احمد: هو، بالکل همدغسې دی. خو دا ډېر مشهور جومات دی.

فیروز: احمده، دا جومات نو ولې دومره مشهور دی؟

احمد: ځکه چې په افغانستان کې اوس تر ټولو څرگند لرغونی جومات همدا دی.

فیروز: خدای خبر دا جومات به څه وخت جوړ شوی وي چې دومره لرغونی دی.

احمد: فیروز جانه! د جوړېدو تاریخ یې درېمې هجري پېړۍ ته رسېږي.

فیروز: درېمې هجري پېړۍ، یعنې څوسوه کاله وړاندې جوړ شوی.

احمد: خدای مې دې غاړه نه بند وي، شاوخوا دولس سوه معاله پخوا جوړ شوی دي.

فیروز: هو، هو دا خو په رښتیا چې ډېر پخوانی جومات دی.

احمد: فیروزه! پوهېږې چې دا به څومره لوی جومات وي؟

فیروز: یاره چې دومره تاریخې دی، نو ښه لوی به هم وي.

احمد: نه، نه دومره لوی نه دی، لس متره اوږدوالی لري.

فیروز: نو په همدغه لس متره اوږدوالي دومره مشهور دی؟

احمد: نه، نه! دا جومات په دوو سببونو ډېر مشهور دي.

فیروز: یو خو دا چې ډېر پخوانی دی، بله یې کومه وجه ده؟
احمد: بله وجه یې د جومات زینتي ارخ دی او دننه ډېر ښایسته جوړ شوی دی.
فیروز: احمده انډیواله خیر یوسې چې د دغه جومات په اړه دې معلومات راکړل.
احمد: ته هم ژوندی اوسې.

(۲)

وږمه: ملالۍ! تاسو د بابر بڼ نوم اورېدلی دی؟
ملالۍ: اورېدل یې څه کوې چې یو وخت مې له ماما سره په کابل کې دغه باغ ته تللې هم وم.
وږمه: ته پوهېږې چې دغه باغ به څه وخت او چا جوړ کړی وي؟
ملالۍ: نه وږمې! نه پوهېږم چې چا به جوړ کړی وي؟
وږمه: غوږ شه چې زه یې درته ووایم.
ملالۍ: بس زه درته غوږ یم، وایه راته.
وږمه: یو پاچا په پخوانیو زمانو کې ظهیرالدین محمد بابر نومېده.
ملالۍ: ښه یعني چې دا بڼ همدغه ظهیرالدین محمد بابر جوړ کړی.
وږمه: هو، بالکل همدغه پاچا جوړ کړی دی او دا باغ د کابل ښار له بالاحصار نه مخ قبلې څنډې ته د گذرگاه په سیمه کې جوړ شوی دی.
ملالۍ: وږمې، زه چې ورغلې وم، د دغه باغ شاوخوا دېوال ټول له خټو نه جوړ شوی و.
وږمه: هو، بالکل اوس هم هماغسې دی، ښایسته پخڅې دي.
ملالۍ: وږمې دا باغ څه وخت جوړ شوی دی؟
وږمه: دقیقه نېټه خو یې راته نه ده معلومه، خو وایي چې تقریباً پنځه شپږ سوه کاله مخکې به جوړ شوی وي.
ملالۍ: ولا چې دا خو هم ډېر مخکې جوړ شوی دی.

وږمه: هو په منځ کې يې د بابر مزار، د اوبو حوض، جومات، د روانو اوبو ويالې او ښکلې ښکلې ونې دي.

ملالۍ: هو کنه، د هرې جمعې په ورځ او په نورو ورځو کې هم ورته ډېر خلک مېلې ته راځي.

## (۳)

زرمينه: زه به تاسو ته په کندهار ولايت کې د ميرويس نيکه د زيارت په اړه معلومات درکړم.

نسيمه: بالکل سمه ده، ميرويس نيکه ډېر مشهور ملي مشر تېر شوی دی.

زرمينه: د کندهار ولايت اوسېدونکی و او زيارت يې هم په کندهار کې دی.

نسيمه: ښه زرمينې! د ميرويس نيکه زيارت د کندهار په کوم ځای کې دی؟

زرمينه: زيارت يې د ارغنداب سيند ته نژدې د کندهار هرات د لوی واټ پر غاړه د کوکران په سيمې کې دی.

نسيمه: ميرويس بابا د همدغه ځای اوسېدونکی وګڼه.

زرمينه: نه، د دغه ځای اوسيدونکی نه و، خو څه د پاسه درې سوه کاله مخکې ميرويس نيکه په همدغه ځای کې د فارسيانو له حاکميت څخه خپله خپلواکي اعلان کړه.

نسيمه: ښه، ښه اوس يی نو د زيارت په اړه وغږېږه.

زرمينه: هو، زيارت يې په يو نسبتاً وړوکی بڼ کې جوړ شوی چې شاوخوا يې د صبر او خرما ونې دي او په ښايسته ډول جوړ شوی دی.

نسيمه: دا زيارت به هم دوه درې سوه کاله مخکې جوړ شوی وي کنه؟

زرمنيه: نه دومره پخوانی نه دی، د زيارت ودانی يې د نادرخان د پاچا هی او واکمنی په دوران کې جوړه شوې ده.

نسيمه: يعنې تقريباً سل کاله مخکې جوړ شوی دی.

زرمينه: هو، د زيارت ودانې يې تقريباً د احمدشاه بابا له زيارت سره ورته والی لري.

نسيمه: آفرين زرمينې، ښه معلومات دې راکړل.

د متن لنډیز:

احمد په یوه کتاب کې د بلخ د یوه لرغوني جومات (نهه گونبزي مسجد) په هکله معلومات لوستي، د هغه په هکله خپل ملگري فیروز ته معلومات ورکوي چې دا جومات د بلخ په ولسوالۍ کې واقع او شاوخوا دولس سوه کاله لرغونتیا لري. د دې مسجد د جوړښت او ښکلا ستاینه کوي.

وروسته بیا ورېمه او ملالۍ د هېواد د یوه تاریخي باغ چې د ((بابر بڼ)) په نامه یادېږي او په کابل ښار کې واقع دی، په هکله خبرې اترې کوي او یو بل ته معلومات ورکوي.

زرمینه او نسیمه د میرویس نیکه د مقبرې په هکله له یو بل سره خبرې اترې کوي او وايي چې دغه لرغونې ودانۍ د کندهار د ارغنداب د سیند پر غاړه واقع ده. ودانۍ یې د نادرخان د واکمنۍ په وخت کې جوړه شوې ده. زموږ په هېواد کې دغسې باغونه ډېر دي چې ترمیم او ساتنې ته اړتیا لري.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي.

۲ـ ښوونکی دې ځینې ستونزمنې کلمې په خپله د زده کوونکو په وسیله او ځینې چې هغوی یې نشي حل کولای، زده کوونکو ته معنا کړي.

۳ـ زده کوونکي دې وگومارل شي چې دوه دوه په خپلو منځو کې د فیروز او احمد همدارنگه د ورېمې او ملالۍ نقشونه ترسره کړي.

٤ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولگي مخې ته راشي او په متن کې د یوه تاریخي بڼ یا ودانۍ په اړه معلومات یا د متن د هغې برخې مفهوم نورو ټولگیوالو ته ووايي.

۵ـ ښوونکی دې دا لاندې جملې چې په نحوي لحاظ ګډوډې دي، پر تختې ولیکي، ځینې زده کوونکي دې ور وبولې چې د هغو سمه بڼه پر تختې ولیکي:

- مسجد به بلخ کښی دی نهه ګونبزې
- بڼ د بابر دی په کابل کې
- د هېواد دا دی تاریخی بڼ
- دی جوړ پاچا بابر کړی
- د نیکه میرویس په کندهار کې ده مقبره

۶ـ په دې لاندې پوښتنو دې پر لوست د پوهېدنې کچه وارزول شي:

- نهه ګونبزي مسجد د هېواد په کوم ولایت کې واقع دی؟
- دغه جومات څومره پخوانی دی؟
- د بابر بڼ چېرته واقع دی؟
- بابر باغ کوم پاچا جوړ کړی دی؟
- د میرویس نیکه مقبره چېرې واقع ده؟
- د میرویس نیکه د مقبرې اوسنی ودانۍ د چا په وخت کې جوړه شوې ده؟
- د بل کوم تاریخي بڼ نوم واخلئ؟
- بله کومه لرغونې ودانۍ پېژنئ، نوم یې واخلئ؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلې سیمې یا د هېواد کومې بلې سیمې د تاریخي ودانۍ یا ځای په هکله څو کرښې معلومات ولیکي او په راتلونکي ښوونیز ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ووایي.



# محاوره

## په هېواد کې د عصري او رسمي ښوونې او روزنې تاریخي بهیر په هکله (خبرې اترې)

ـ د عصري ښوونې او روزنې په معنا او مفهوم پوهېږئ؟

ـ ویلای شئ چې په هېواد کې لومړنی عصري او رسمي ښوونځی کله رامنځته شوی دی؟

هسې خو زموږ په هېواد کې عنعنوي ښوونه او روزنه ډېر لرغونی تاریخ لري او ریښه یې په آریانا کې ډېرو وړاندینیو زمانو ته رسېږي. له اسلام څخه دمخه زمانو کې په بېلو بېلو دورو کې د مختلفو عقیدو، واکمنو سیاسي او ټولنیزو نظامونو تر برلاسي او حاکمیت لاندې په عنعنوي توګه ښوونه او روزنه تر سره کېدله. له اسلام وروسته هم زموږ په هېواد کې د اسلامي علومو، دیني، ادبي او نورو ټولنیزو علومو زده کړه په عنعنوي توګه په جوماتونو او کورونو کې تر سره کېدله. د لومړي ځل لپاره د امیر شیرعلي خان د دویمې پلا واکمنۍ په وختونو کې په معاصره بڼه ښوونه او روزنه په رسمي ښوونځیو کې پیل شوه او تر ننه یې په بېلابېلو بڼو پراختیا او دوام موندلی دی. په دې لوست کې مو تاسو ته د معاصرې او رسمي ښوونې او روزنې د تاریخي بهیر په هکله یو لړ معلومات راغونډ کړي چې هم ستاسې د پوهې او معلوماتو پانګه زیاتوي او هم درسره د پښتو ژبې د خبرو اترو د پیاوړتیا په چارو کې مرسته کوي.

توريالى: بریالیه! زموږ په هېواد کې به رسمي ښوونځي کله رامنځته شوي وي؟

بريالى: ډېره ښه پوښتنه دې وکړه، له ماسره هم له ډېر وخت نه دا پوښتنه شته، خو نه پوهېږم چې له چا نه پوښتنه وکړم.

توريالى: زموږ او ستاسې د ټولګيوال (زمري) ورور (زلمی) د ښوونې او روزنې پوهنځی لوستی دی، که له هغه نه پوښتنه وکړو، ګوندې که څه معلومات راکړي.

(دواړه د زمري دوی کور ته ورځي، له ستړي مه شي وروسته ورسره خپله پوښتنه داسې مطرح کوي)

توريالى: زلمی صاحب! زموږ په هېواد کې لومړنی رسمي ښوونځی کله جوړ شوی دی؟

زلمی: ښه پوښتنه مو وکړه. زموږ په هېواد کې د عصري ښوونځیو له را منځته کېدو څخه کابو (۱۳۰) کاله تېرېږي.

توريالى: دا د کوم پاچا د واکمنۍ وخت و؟

زلمی: د امير شيرعلي خان دويمه پلا پاچاهي وه. (۱۸۶۸ _ ۱۸۷۹م. کلونه)

بريالى: دا څه ډول ښوونځی و او چېرته جوړ شو؟

زلمی: دا لومړنی ښوونځی یو حربي ښوونځی و. د کابل په شېرپور کې جوړ شوی و.

زمری: په دې ښوونځي کې څه ډول زده کړې کېدلې؟

زلمی: وروره، په دې ښوونځي کې زده کوونکو پوځي یا نظامي او عسکري زده کړه ترسره کوله.

بريالى: له حربي ښوونځي پرته کوم بل ښوونځی په دغه دوره کې نه و جوړ شوی؟

زلمی: ولې نه، وروسته بيا د کابل په بالاحصار کې د درباريانو د اولادونو لپاره یو ملکي ښوونځی هم جوړ شو.

توريالى: په دغه ښوونځي کې به زده کوونکو څه زده کول؟

زلمی: په هغه کې بېلا بېل اجتماعي او ادبي علوم او رياضيات زده کوونکو ته ښودل کېدل.

بريالى: موږ خو د تاريخ په مضمون کې لوستي چې د امير شيرعلي خان له پاچاهۍ څخه وروسته څه موده کورنی اړدوړو. بيا امير عبدالرحمٰن خان قدرت ته ورسېد. د نوموړي د

واکمنی په وختونو کې کوم ښوونځی موجود و؟

زلمی: څرنګه چې امیر عبدالرحمن خان له کورني اړودوړ څخه وروسته واک ته ورسېد، خپله ټوله پاملرنه یې د ملک او خلکو تابع کولو، آرامولو او د حکومت ټینګولو ته وکړه. معارف ته یې کومه پاملرنه ونه کړه. هغه ښوونځي چې دمخه جوړ شوي وو، هغه هم په کورني اړودوړ کې له منځه تللي وو.

توریالی: موږ د تاریخ په مضمون کې لوستي دي چې له امیرعبدالرحمن خان څخه وروسته د هغه زوی حبیب الله خان پاچا شو. د نوموړي په دوره کې کوم ښوونځی جوړ شوی؟

زلمی: هو، د نوموړي په دوره کې په وطن کې هم آرامي راغلې وه. دا پاچا د خپل پلار په نسبت ډېر معارف پالونکی پاچا و. د خپلې واکمنۍ په دویم کال (۱۹۰۳م.) یې په کابل کې یو عصري ښوونځی جوړ کړ.

بریالی: هغه ښوونځی څه نومېده؟

زلمی: هغه حبیبیه ښوونځی و چې نن هم په کابل ښار کې یوه موجوده او فعاله لېسه ده.

توریالی: ښه، نو دا هم یو عصري ښوونځی و.

زلمی: هو. دا یو عصري ښوونځی و، ډېر ژر یې دومره پرمختګ وکړ چې د زده کوونکو شمېر یې (٤٠٠) تنو ته ورسید. او بېلا بېل عصري علوم: تاریخ، جغرافیه، حساب، هندسه، پښتو او دري ادبیات او نور پکې تدریس کېدل.

بریالی: د دې ښوونځي ښوونکي څوک وو؟

زلمی: زیاتره ښوونکي یې زموږ د هېواد پیاوړي دیني عالمان، پوهان او ادیبان وو. یو شمېر بهرنیو ښوونکو هم پکې تدریس کاوه.

توریالی: دغه بهرني ښوونکي د کومو هېوادونو وو؟

زلمی: ځینې هندي مسلمانان او یو شمېر یې ترکان وو.

بریالی: په دې ښوونځي کې زده کړه په څو دورو کې تر سره کېدله؟

زلمی: ډېره ښه پوښتنه دې وکړه، د زده کړې لپاره درې دورې ټاکل شوې وې.

بریالی: هغه کومې وې؟

زلمي: هغه د زده کړې درې دورې: ابتدائيه، رشديه او اعداديه وې.

بريالی: هره دوره به څو کاله وه؟

زلمی: ابتدائيه دوره يې څلور کاله وه. رشديه دوره يې درې کاله وه او اعداديه دوره يې هم درې کاله وه.

توريالی: په دغه وخت کې نور ښوونځي هم وو، که همدا يو د حبيبې ښوونځی و.

زلمی: نه، يوازې همدا د حبيبې ښوونځی نه و، په کابل کې د حربيې ښوونځی هم جوړ شوی و.

بريالی: د حبيبې او حربيې له ښوونځيو پرته کومه بله تعليمي مؤسسه يا اداره په دغې دورې کې جوړه شوې ده؟

زلمی: هو، له دغو دوارو ښوونځيو پرته په کابل کې يو دارالمعلمين هم په همدغه دوره کې جوړ شو.

توريالی: دارالمعلمين د څه لپاره جوړ شو؟

زلمی: دارالمعلمين د دې لپاره جوړ شوی و چې د ښوونځيو لپاره مسلکي ښوونکي وروزي.

بريالی: هغوی به څو کاله زده کړه کوله؟

زلمی: په دارالمعلمين کې د زده کړې موده درې کاله وه.

توريالي: په دغه دوره کې په ولايتونو کې هم ښوونځي جوړ شوي وو؟

زلمی: نه دولت ونه کړای شول چې له مرکز (کابل) پرته په ولايتونو کې ښوونځي جوړ کړي.

البته په نوروسيمو او ولايتونو کې د پخوا په څېر ديني زده کړې په عنعنوي ډول تر سره کېدلې. په نورستان کې چې وګړي يې د اميرعبدالرحمان په وخت کې مسلمانان شوي او د حکومت تابع شوي وو، د امير حبيب الله خان په وخت کې هغوی ته په خپلو سيمو کې څو سيمه ييز ښوونځي جوړ شول.

توريالی: په دغو ښوونځيو کې هغو خلکو ته د څه زده کړه کېدله.

زلمی: هغوی ته ښوونکي ګومارل شوي وو چې ديني احکام او موضوعات او ترڅنګ يې ليک لوست ور زده کړي.

(۲)

زرغونه: د امیر حبیب الله له مړینې وروسته د هغه د زوی امان الله خان د پاچاهۍ په وخت کې د پوهنې حالت څه ډول و؟

نازو: امان الله خان یو روڼ اندی ځوان واکمن و.

زرغونه: زموږ د هېواد خلکو خپله خپلواکي هم د هغه له واکمن کېدو سره سمه ترلاسه کړه.

نازو: هو، سمه ده. دغه نومیالي واکمن پوهې او معارف ته ډېره پاملرنه وکړه.

زرغونه: کوم ښوونځی یې جوړ کړ؟

نازو: ښوونځی څه چې ډېر ښوونځي یې جوړ کړل. نه یوازې په کابل بلکې د هېواد په ولایتونو او ځینو ولسوالیو کې یې هم ښوونځي جوړ کړل.

نازو: وایي چې په کابل کې د استقلال، غازي او اماني ښوونځي په همدغې دورې کې جوړ شول.

نازو: نه یوازې دا ښوونځي، بلکې په کابل کې دارالمعلمین هم جوړ شو. یوازې د کابل په ولسوالیو کې (۲۲) ښوونځي پرانیستل شول او په ټول هېواد کې د جوړو شوو ښوونځیو شمېر تر (۳۰۰) هم زیات و.

زرغونه: دا دومره ښوونځي د کومې ادارې یا مرکز له خوا اداره کېدل؟

نازو: په دې وخت کې د دولت په چوکاټ کې د معارف یا پوهنې وزارت رامنځته شو. دغه وزارت د پوهنې چارو د سمبالښت لپاره نورې ادارې او مرکزونه هم لرل. په مرکز کې د تعلیمي چارو د سمبالښت لپاره بېلا بېل ریاستونه او په ولایتونو کې د پوهنې لوی مدیریتونه وو.

زرغونه: د نجونو لپاره عصري زده کړه څه وخت پیل شوه؟

نازو: د نجونو لپاره عصري زده کړه هم د امان الله خان د واکمنۍ په وخت کې پیل شوه.

زرغونه: د نجونو لومړنی ښوونځی کله او د څه په نوم جوړ شو؟

نازو: د نجونو لومړنی ښوونځی ((مستورات ښوونځی)) و چې دا هم د امان الله خان د واکمنۍ په وخت (۱۲۹۹ لمریز) کال په کابل کې جوړ شو.

زرغونه: مورې په تاریخ کې لوستي چې د امان الله خان واکمني د یوه کورني اړودوړ په نتیجه کې رنګه شوه، د هېواد پوهنه له کوم حالت سره مخامخ شوه.

نازو: له امان الله خان څخه وروسته چې کوم کورنی اړودوړ پېښ شو، په هغه کې معارف په ټپه ودرېد. ټول ښوونځي د زده کوونکو پرمخ وتړل شول.

زرغونه: کله چې کورنی اړودوړ پای ته ورسېد، بیا معارف څنګه شو؟

نازو: له کورني اړودوړ وروسته چې په هېواد کې امنیت او سوله راغله. د نادرخان د واکمنۍ پر مهال بیا هم پوهنې ته د حکومت پاملرنه واوښته. په ښوونځیو کې زده کړې پیل شوې او ځینې نوي ښوونځي هم رامنځته شول.

زرغونه: د امان الله خان د دورې په شان دا وخت هم معارف پرمختګ وکړ؟

نازو: معارف یو څه پرمختګ وکړ، خو کوم حالت او رونق چې د امان الله خان په دوره کې یې درلود، هغه یې ترلاسه نه کړای شو. بیا هم ډېر ښوونځي جوړ شول.

زرغونه: پوهنتون څه وخت منځته راغلی دی؟

نازو: په هېواد کې د لوړو زده کړو لپاره د نادرخان د واکمنۍ په موده کې لارې چارې برابرې شوې.

زرغونه: یعنې پوهنتون په همدې دوره کې جوړ شوی دی؟

نازو: هو، لومړی د دارلفنون په نوم د لوړو زده کړو د یوې مؤسسې بنسټ کېښودل شو. په (۱۳۱۱ لمریز کال) په دغې مؤسسې کې لومړی د طب پوهنځی تاسیس شو.

زرغونه: د نادرخان له واکمنۍ څخه وروسته د پوهنې بهیر څه ډول شو؟

نازو: وروسته د محمد ظاهرخان د واکمنۍ په دوره کې پوهنې ډېر عمومیت پیدا کړ. د هېواد په مرکز او ولایتو نو سربېره په لرې پرتو ولسوالیو کې هم زیات شمېر (لومړي، منځني او لېسې) ښوونځي د هېواد د نجونو او هلکانو پرمخ پرانیستل شول. په کابل پوهنتون کې بېلا بېل پوهنځي (ساینس، ادبیات، تعلیم او تربیه، حقوق، انجنیري، زراعت او نور) را منځته شول. وروسته بیا د کابل پولیتخنیک او ننګرهار پوهنتونونه هم تاسیس شول، اوس خو د هېواد په مرکز او په نورو ولایتونو کې بېلابېل دولتي او ځانګړي ښوونځي او پوهنتونونه جوړ شوي دي او د ښوونې او روزنې د عامېدو بهیر ښه ګړندی روان دی.

د متن لنډیز:

د دې لوست مفهوم دا دی چې زموږ په هېواد کې د دوديزو او عنعنوي زده کړو پر ځای د عصري علومو زده کړه د اميرشير علي خان د دويمې پلا واکمنۍ په وخت کې دود شوې ده. په کابل کې د لومړي ځل لپاره د زده کړې او روزنې لپاره په عصري بڼه حربيه ښوونځی او بیا د دربار د چارواکو د اولادونو لپاره یو ملکي ښوونځی په بالاحصار کې جوړ شو. وروسته د اميرعبدالرحمن په دورې کې دې چارې ته کومه پاملرنه نه ده شوې. وروسته د اميرحبيب الله خان په وخت کې د حبيبې رسمي عصري ښوونځی او حربيه ښوونځی هم جوړ شو چې نظامي او د عصري علومو زده کړې پکې کېدلې. د اعليحضرت امان الله خان د واکمنۍ په کلونو کې چې خپلواکي ترلاسه شوه، پوهنې ته ډېره پاملرنه وشوه. د پوهنې وزارت رامنځته شو. د هېواد په مرکز، ولايتونو او ان دا چې په لرې ولسواليو کې هم رسمي ښوونځي جوړ او د عصري علومو زده کړه پکې پیل شوه. بهرنيو هېوادونو ته هم هلکان او نجونې د عصري زده کړې لپاره ولېږل شول. د نجونو لپاره د ((مستورات)) په نامه لومړنی رسمي عصري ښوونځی جوړشو. د کورني اړودوړ په خو میاشتنۍ موده کې د رسمي ښوونځيو دروازې د زده کوونکو پرمخ وتړل شوې او بیا وروسته چې اړودوړ پای ته ورسېد، سوله او امنيت رامنځته شو، د عصري ښوونځيو د فعالولو او نوو جوړولو لړۍ پیل شوه. د لوړو زده کړو لپاره د کابل پوهنتون په چوکاټ کې د شرعياتو، ادبياتو، ساينس، فارمسي، کرنې، حقوقو او بيلابيلو علومو ځانګړي پوهنځي جوړ شول چې دا بهير تر ننه هم ښه چټک روان دی.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې وګومارل شي چې لومړی متن په پټه خوله له ځان سره ولولي، ستونزمنې کلمې دې په نښه او هغه دې په خپله زده کوونکي او يا ښوونکی حل کړي.

۲ـ په ترتيب سره دې څو زده کوونکي د ټولګي مخې ته وبلل شي چې د توريالي، بريالي، او زلمي نقشونو په ترسره کولو هر يو په متن کې راغلي خپلې مکالمې ولولي.

۳ــ زده کوونکي دې په نوبت سره پورته شي، یو دې په متن کې د امیرشیرعلي خان د واکمنۍ پر مهال عصري ښوونې او روزنې په باب راغلي مفاهیم او بل دې د امیرحبیب الله خان، بل دې د امان الله او همدارنګه بل دې له کورني اړودوړ څخه وروسته د ښوونې او روزنې د حالت په هکله راغلي معلومات په خپلو الفاظو کې ټولګیوالو ته ووایي.

٤ــ په دې لاندې پوښتنو کې دې د لوست د زده کړې د کچې ارزونه وشي:

- په افغانستان کې لومړنی عصري او رسمي ښوونځی د کوم واکمن په وخت کې رامنځته شو؟
- لومړنی عصري ښوونځی په کوم نوم او چېرته واقع و؟
- د امیر عبدالرحمٰن خان په وخت کې رسمي او عصري ښوونې روزنې څه حالت درلود؟
- د حبیبې ښوونځی د کوم واکمن په وخت کې چېرته رامنځته شو؟
- د کابل دارالمعلمین د لومړي ځل لپاره د کوم واکمن په وخت کې جوړ شو؟
- د امان الله خان د واکمنۍ په وخت په کابل کې له حبیبې رسمي ښوونځي څخه پرته نور کوم مشهور ښوونځي رامنځته شوي دي؟
- د نجونو لپاره رسمي او عصري زده کړې د چا د واکمنۍ په وخت کې رامنځته او لومړنی ښوونځی څه نومېده؟
- دارالفنون پوهنتون د کوم واکمن په وخت کې چېرته رامنځته شو او لومړنی پوهنځی یې کوم و؟




زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د اعلیحضرت امان الله خان د واکمنۍ په وخت کې د رسمي او عصري ښوونې روزنې په هکله خوکرښې معلومات ولیکي او راتلونکي درسي ساعت کې دې هغه نورو زده کوونکو ته ولولي.

# پښتني دودونه




ـ تاسې د دود دستور یا رواج په معنا پوهېږئ؟

ـ ستاسې په کور کلي او ولس کې څه ډول دودونه او رواجونه شته؟

د نړۍ ټول ولسونه او قومونه خپل ځانګړي دودونه لري. ځینې دودونه د قومونو ترمنځ ورته والی هم لري. ځینې دودونه د ولس په ګټه او ځینې یې په زیان دي.

دودونه او عنعنات یو لړ اصول او مقررات وي. ولس تر ډېره د دغو اصولو او مقرراتو په رعایت کولو مجبور او مکلف ګڼل کېږي.

پښتون ولس هم د ټولنیز ژوند په بېلا بېلو برخو کې یو زیات شمېر دودونه لري. دغه دودونه له لرغوني وخت څخه د پښتون ولس له ژوند سره سم را روان دي. د ټولنیز ژوند ژواک تر ډېره په دغو دودونو ولاړ دی. په دې لوست کې له دغو دودونو څخه ځینې درپېژنو:

هر ولس ځینې ځانګړې او ځینې یې لږو ډېر سره ورته او ګډ دودونه لري چې د ټولنې ټول وګړي د هغو په منلو او ترسره کولو مجبور او مکلف ګڼل کېږي. پښتون ولس هم ځینې ځانګړې او ځینې له نورو قومونو او ولسونو سره ورته او ګډ دودونه لري چې له پېړیو پېړیو راهیسې موجود او په ټولنیز ژوند کې پرې عمل کېږي.

پښتني دودونه او رواجونه چې په پښتون ولس کې د یوه قانون او ټولنیز دستور حکم لري، ډېر زیات دي. د دې پښتني دودونو منل او پرځای کول د پښتنو د قومي تهذیب او پښتونولۍ یوه لازمي برخه ده. که په ټولنه کې څوک له دغو دودونو او رواجونو څخه غاړه وغړوي، هغه شخص رښتینی پښتون نه ګڼل کېږي.

د پښتني دودونو شمېر زیات او د پښتنو د ژوند زیاتې خواوې پر دغو دودونو ولاړې دي. غم او ښادي، هر یو خپل جلا جلا دودونه او مراسم لري، جرګه او مرکه د یوه غوره دود په توګه ځانګړې لارې او قوانین لري، ننواتې او روغه جوړه بېل دود او دستور لري، مظلوم ته پناه ورکول، اشر یا ګډ ټولنیز کار کول بېل دودونه دي. مېلمه پالنه، هم د پښتنو یو دود دی.

د ټولنیز ژوند د هر اړخ د سمبالښت لپاره پښتانه خپل منلي دودونه لري چې دلته ټول نشو درپېژندلی. د بېلګې په توګه د مېلمه پالنې، پناه ورکولو، اشر، ناغې او د تیرې ایښودلو دودونه په ډېر لنډ ډول درپېژنو.

## د مېلمه پالنې دود:

مېلمه پالنه یا مېلمستیا په پښتني دود دستور کې ډېرې ژورې ریښې او لوړ ځای لري. پښتانه مېلمه پالنه د سخاوت او ښې ځوانۍ یوه ډېره غوره بېلګه بولي.

میلمه پالنه په ټولو افغانانو کې عامه ده، لکه ((د تاریخ افاغنه)) لیکوال مولوي عبدالمجید افغاني چې د خپل کتاب په (۱۹۷مخ) کې لیکلي: په افغانستان کې هېڅ مسافر ته په لارې د خرڅ ضرورت نشته. په مېلمه پالنه کې ښځې له نارینه وو څخه کمې نه دي.

په پښتنو کې د مېلمه پالنې په دود کې څه خاص مادي او سیاسي موخه او غرض په پام کې نه وي. په دغه فطري مېلمه پالنه کې چې د دغې ټولنې د هر وګړي ځانګړنه ده، د مسافرو، بیوزلو او محرومو انسانانو سره د مرستې ملاحظه او احساس ډېر پیاوړی دی.

دېرې او حجرې په پښتني ټولنه کې د مېلمه پالنې ځانګړي مرکزونه دي او په دې هر یوه کې د خلکو له توان سره سم مېلمه ته لازمې آسانتیاوې برابرې او د مېلمه پالنې چارې په ورین تندي تر سره کیږي.

د مېلمه هر ډول ساتنه پر ځان لازمه ګڼي. دې کار ته په پښتني ټولنه کې ((پر مېلمه غیرت)) وایي او د پښتونولی له اساسي او بنسټیزو توکو څخه ګڼل کېږي.

## د پناه ورکولو دود:

په پښتنو کې دا یو مهم دود او دستور دی چې پناه راوړونکي ته به خامخا پناه ورکوي. پناه ورکوونکی د پناه راوړونکي د سر او مال د ساتنې مسوولیت لري.

که څوک د خطر په وخت کې د مرګ یا د خپلې بې عزتی له وېرې نه د چا کور او ځای ته پناه یوسي، نو بیا هغه د پښتنو د دود دستور له مخې مجبور او مکلف دی چې د پناه را وړونکي هر ډول ساتنه او پالنه وکړي.

د پښتني لارښود د کتاب لیکوال پوهاند صدیق الله رښتین د ((تواریخ حافظ رحمت خاني)) په حواله لیکي: ((د ملک احمد یوسفزي او د لازاکو قبیلې تر منځ سخته دښمني وه. ملک احمد د سولې لپاره د ملک محمدخان د لازاک کلي ته ورغی. خلک پرې خبر شول، غوښتل یې چې ویې وژني، په دې وخت کې هغه د ملک محمدخان کور ته پناه یوړه. د ملک محمدخان مېرمنې د پښتني دود له مخې ده ته په خپل کاله کې پناه ورکړه او له مرګه یې وساته.))

که چېرې یو ګناهکار چاته پناه ورورې، نو بیا بې طرفه ولسي مشران د سولې او جوړې لپاره کوښښ کوي. خامخا د حل یوه لاره پکې پیدا کوي. خو تر هغه چې د حل لاره پیدا کېږي، د پښتنو د دود او د ستور له مخې په پناه ورکوونکي باندې د هغه هر ډول ساتنه لازمه او ضروري ده.

## اشر:

د اشر د کلمې اصطلاحي معنا ګډ او د خپلې خوښې کار دی. دا یو غوره پښتني دود دی چې له ډېرې لرغونې زمانې څخه په پښتون ولس کې شته.

پښتانه د خپل ټولنیز ژوند په بهیر کې، په ځانګړې توګه له ښارونو لیرې په کلیوالو سیمو کې ډېر کارونه، لکه: کرکیله، لو، غوبل، ویالې وېستل، کارېزونه پاکول او داسې نور په ګډه تر سره کوي. د اشر یا ګډ کار د دود په وسیله له یوې خوا کارونه ډېر ژر، ښه او آسانه تر سره کېږي او له بلې خوا په ټولنه کې له بېوزلو او بې وسو وګړو سره پوره مرسته کېږي.

اشر یو ډېر غوره دود دی. چې د ټولنیز ژوند په بهیر کې ډېرې ګټورې او اغېزناکې نتیجې لري. په کورو کلي او ولس کې یې د اتفاق، خپل منځي یووالي او پیوستون ډېره ښه وسیله او بېلګه ګڼلای شو.

## تیږه ایښودل (سوله او روغه):

که چېرې د دوو وګړو، کورنیو او یا قبیلو ترمنځ په کومه معامله باندې اوږده شخړه او جګړه پېښه شي. په دغه جګړه کې دواړو خواوو ته د سر او مال زیانونه واوړي، نو په دې وخت کې په خپله د دې دواړو خواوو په غوښتنه او یا د نور ولس او درېمګړي په ښه نیت او اراده د سولې او روغې جوړې خبرې پیلېږي. دا روغه جوړه د یوې ټاکلې مودې اویا تل لپاره د سپین ږیرو یا د کلیوالي او سیمه ییزې جرګې له خوا منځته راځي. د جرګې له فیصلې او پرېکړې نه وروسته چې د مخالفینو د جوړولو او پخلا کولو لپاره کوم تړون او قرارداد کېږي، هغې ته سوله او روغه وایي.

د جرګې له خوا د دغې روغې او سولې په مهال په دواړو خواوو ((ناغه)) ایښودل کېږي او هغوی ته په ډاګه اعلانېږي. که هر لوري د جرګې له پرېکړې څخه سرغړونه وکړه، په سزا کې به ترې ناغه اخیستل کېږي.

د روغې جوړې پرېکړې او فیصلې ته په پښتني دودونو کې ((تیږه ایښودل)) وایي. له

فیصلې څخه سرغړونه ((تیره ماتول)) بلل کېږي. دا تیره ماتول یا سرغړونه د پښتني دود له مخې یو ډېر ناوړه کار ګڼل کېږي.

په پښتني دود کې مؤقتي جوړې ته سوله وايي. روغه د همېشنۍ فیصلې او جوړې معنا لري. تیره ایښودل د جګړه مارو خواوو ترمنځ د متارکې او سولې معنا لري. د تیرې ایښودل او د سولې د خبرو په وخت کې ډزې یا یو پر بل تېری او برید بند وي چې دې ته په پښتني دود کې ((ډزبند)) وايي.

د متن لنډیز:

لکه څنګه چې هر ولس او ټولنه خپل ځانګړی دودونه او عنعنات لري، دغسې پښتانه هم د بشري نړۍ د يوې برخې په توګه له ډېرو غوره دودونو او عنعناتو څخه برخمن دي. دغه دودونه او رواجونه د دوی د ژوند پر ټولو برخو چاپېر او واکمن دي. غم او ښادي خپل جلا دودونه او مراسم لري، همدارنګه جرګه او مرکه، ننواتې او روغه جوړه، مېلمه پالنه، ګډ کار يا اشر، پناه ورکول، ننواتې او داسې نور هر يو د غوره دود په توګه په پښتني ټولنه کې موجود دي او د ولس ټول وګړي يې په ورين تندي مني او رعايت يې کوي.

## فعالیتونه

۱ـ د ښوونکي له متن لوستنې او لازمو څرګندونو وروسته دې، زده کوونکي وګومارل شي چې متن په چوپه خوله په ډېر غور ولولي او ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي.

۲ـ د زده کوونکو له خوا په نښه شوې کلمې دې ښوونکی د زده کوونکو په وسیله او هغه چې هغوی يې له معنا کولو عاجز وي په خپله معنا کړي.

۳ـ یو یو زده کوونکي دې تختې ته وروبلل شي چې هغه کلمې په مناسبو جملو کې وکاروي. ښوونکی دې د اړتیا پرمهال مرسته ورسره وکړي.

٤ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د متن یو یو پراګراف د ټولګیوالو په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د اړتیا پر مهال ورسره مرسته وکړي.

٥ـ ښوونکی دې زده کوونکي په نوبت سره د ټولګي مخې ته راوبولي چې د متن مفهوم په خپلو الفاظو کې نورو ټولګیوالو ته ووایي.

٦ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- دود او دستور څه شی دی؟
- دود دستور ولې د ټولنې پر وګړو ژورې اغېزې لري او په منلو یې مجبور او مکلف دی؟
- څوک د پښتنو د مېلمه پالنې د دود په اړه څه ویلای شي؟
- څوک د اشر یا ګډ کار د عنعنې په هکله خبرې کولای شي؟
- څوک د ننواتې په هکله څه ویلای شي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه له دغو یادو شوو دودونو څخه سربېره د پښتنو یو بل مشهور دود او دستور وټاکي او د هغه په هکله ترلاسه کړي معلومات دې د پښتو لوست په راتلونکي درسي ساعت کې نورو ټولګیوالو ته ولولي.

## وييپانگه:



((الف))

اتل: قهرمان، بريالی

احسان: نېکي، ښېګڼه

ارزول: ارزيابي کول

اړ باسي: مجبوروي

اړتيا: ضرورت

اړودوړ: اغتشاش، ګډوډي

اړونده: مربوطه

اړه: ارتباط، احتياج

استازی: نماينده

اشر: ګډ کار

آبدات: تاريخي ودانۍ

اعتراض: انتقاد، ګوتنيونه

اعجاز: هغه کار چه بل خوک ورڅخه عاجز وي

اغېزناکه: ګټوره، تاثير لرونکې

افضل: غوره

امتياز: توپير، غوره والی

امينان: امانتګران، امانت ساتونکي

انتباه: عبرت، پند، آګاه شدن

الهام: په زړه کې لوېدل

## ((ب))

بدیع : نوی پیدا کوونکی، خلق کوونکی

بډایه: غني

بډاینه : غنا، مړېدنه

برخلیك: سرنوشت

برخمنه: د برخې خاونده

بشپړ: پوره

بلنه: دعوت، غږ کول

بنسټونه: اساسونه، بنیادونه

بڼ: باغ

بڼه: شکل، رنګ

بوختیا: مصروفیت

بوقلمون : رنګا رنګ

بهرنی: خارجي

بهیر: جریان

بېلګه: مثال، نمونه

بېلګې: نمونې، ډولونه

## ((پ))

پاڅون: انقلاب، قیام

پرتله: مقایسه

پړه: ملامتي

پخڅه: د ختو د دېوال رده

پلا: ځل، وار

پلورل: خرڅول

پلویان: طرفداران

پلې: تطبیق، په لار اچونه، عملي

پوړ: مقام، مرتبه

پیاوړی: قوي

پېرزوینه: لورېنه

پیشه: کسب کار

پیل: شروع

پیوستون: یو ځای کېدل، یو موټی کېدل

## ((ت))

تدبیر: چاره، سنجش

ترڅ: ضمن

تقویه: پیاوړی، قوي

تل: بېخ، ژور

تمثیل: په عمل او کړنه ښودل

تندی: تنده، پېشاني

تواضع: حلم، کمیني

تهدید: ګواښ، تر فشار لاندې راوستل

تیکی: پوښ، غلاف

## ((ټ))

ټاټوبی: هېواد، د استوګنې سیمه

ټاکلی: معلوم

ټولګې: مجموعې

ټولنیز: اجتماعي

## ((ج))

جرگه مار: جرگه کوونکی

جرم: گناه

جود: سخا

جلباب: کمزوري، څادر، پړونی

## ((ځ))

ځانگړني: خصوصيات، مواصفات

زغرده: جرئت، زړورتيا، واضح خبره

ځلاند: روښانه

ځواك: قوت، طاقت

ځوړ: مخ ښکته

## ((چ))

چاپېريال: محيط، ماحول

چارواکي: لوړ رتبه مامورين، د چارو واکمن

چمتو: آماده، تيار

## ((څ))

څانگي: ښاخونه، برخي

څرکونه: نښې نښانې، پلوشې

څښتن: خاوند

## ((ح))

حاوي: چاپېر، مجموعه

حسن: ښکلا

حمد : د الله تعالی ستاينه

حوض: ډنډ

## ((خ))

خاتمت : ختمېدل، پای ته رسېدل

خاورين: له خاورو جوړ شوی

خرقه: د درويشانو چپنه

خړوبول: اوبه کول

خليفه : ځای ناستی

خوندي: محفوظ، ساتلی

## ((د))

درهم برهم: گډوډ، خراب، ويجاړ

درهم: عربي پيسې، عربي سکې

دنده: وظيفه

دود: رسم او رواج

دوديز: عنعنوي، مروج

## ((ډ))

ډگر: ميدان

ډېری: زياتره، اکثره

((ذ))

ذوق: علاقه، مينه

((ر))

روحاني : مذهبي مشر

رول: نقش

رويه: سلوك، چلند

رياضت: گوشه نشيني، د عبادت لپاره ځانته ناسته

روڼ اندی: روښانفکر

((ز))

زغمل: تحمل كول

زمولوي: مړاوی كوي، ځپي، ضعيف

((ژ))

ژانرونه: ډولونه

ژغورل: ساتل

ژوي: ژوندي موجودات، حيوانات

((س))

سپېڅلی: مقدس، پاك

سپما: پاسره، زېرمه كول

ستاينه: مدحه، صفت

ستونزمن: مشكل، بحراني

سخاوت : بخشش

سوبې: فتحې

سياستوال: سياست پوه

سيما: ځېره

سيمه ييز: منطقوي

سيمه: منطقه

((ش))

شخړه: لانجه، جګړه، ربړه

شكوه: شكايت

شومي : غرېب اوبه ښبې

((ښ))

ښادمن: خوښ، خوشحال

((ص))

صنيع : جوړوونكى

((ظ))

ظرف: لوښى

((ع))

عارف : په حقيقت سره خداى پېژندونى

عنعنات: دودونه او رواجونه

## ((غ))

غور: دقت، څیرتیا

غورځنګ: نهضت، سیاسي ډله

غوره: ډېره ښه

## ((ف))

فطري: طبیعي

## ((ق))

قلندر: درویش، له دنیا څخه بې پروا

## ((ک))

کارول: استعمالول

کبان: ماهیان

کچه: سطحه، اندازه

کرامت: عزت، بزرګي، خارق العاده کار

کرکه: نفرت

کرکیله: دهقاني، بزګري

کړاو: تکلیف، زحمت

کلاسیک: غوره پخوانی

کوهستان: غرنی سیمه

## ((ګ))

ګالل: تېرول

ګنج: خزانه

ګڼه ګوڼه: بیروبار

ګومارل: مؤظف کول

## ((ل))

لارښود : رهنما، مشر

لامل: سبب

لرغونې: پخوانی

لرغونی: پخوانی

لړۍ: سلسله، قطار

لمریز: شمسي

لوبغاړی: لوبې کوونکی

لونل: شیندل

لیچې: مړوندونه، بازوها

## ((م))

ماڼۍ: ودانۍ، قصر

محروم: بې برخې

مدعي: چې د عوه پرې شوې وي

مزاج : طبعه

مستغني: بې نیازه

مسجع: سجع او قافیه لرونکي

مصرع: (مسره) نیم بیت، یا د بیت یوه برخه

مصلح: اصلاح کوونکی

معینه: ټاکلې

مفصل: تفصیل لرونکی- لوی

مقبولیت : قبول شوی

مقیاس: اندازه

منثور: په نثر، غیر منظوم کلام

منځنی: متوسطه

منظوم: په نظم

موافق: برابر

مورد: ځای

موهومي: غیرواقعي، ډاروونکی

مهال: وخت

((ن))

نادر : نه پیدا کېدونکی، بې ساری، په سختی پیدا کېدونکی

نادودې: ناروا، زورزیاتی

نغښتی: پېچلی، پیچانیده

ننداره: ښودنه، نمایش

نواتې: عذرکول

((و))

واټ: سړک، جاده

واک: صلاحیت

واکمني: واک لرل، قدرت لرل

وداني: آبادي

وده: پرمختیا

ورین: پراخ

وړتیا: لیاقت، اهلیت

وعظ : پند او نصیحت

وکښه: ولیکه

ونډه: برخه

ویاړنه: حماسه، فخریه

ویرژلی: په ویر او ماتم اخته

ویرنه: مرثیه

ویاړونه: افتخارات

((هـ))

هخول: تشویقول

هڅه: کوښښ، هاند

هنروال: هنرمند، د هنر خاوند

هورې: هلته

هیلی: مرغابی

((ي))

یرغل: تېری، تجاوز

# اخځليکونه:


۱_ د کاظم خان شېدا ديوان، د عبدالرؤوف بېنوا سريزه، پښتو ټولنه، ۱۳۳۱ لمريز کال.
۲_ پښتانه شعراء (لومړی ټوک)، عبدالحی حبيبي، پښتو ټولنه، کابل ۱۳۲۰هـ.ش. کال.
۳_ د پښتو ادبياتو تاريخ، (معاصره دوره)، کانديد اکاډمېسن محمد صديق روهي، دانش خپرندويه ټولنه، پېښور، ۱۳۷۸هـ.ش. کال.
٤_ اوسني ليکوال، لومړی ټوک _ دويم ټوک، عبدالرؤوف بېنوا، د مطبوعاتو مستقل رياست، ۱۳٤۰ _ ۱۳٤۱هـ.ش. کال.
۵_ د افغانستان مشاهير، لومړی ټوک، سيد محی الدين هاشمي، د اريک ګرځنده کتابتونونو اداره، ۱۳۸۷هـ.ش. کال.
٦_ پښتنې مېرمنې، عبدالرؤوف بېنوا، پښتو ټولنه، کابل، ۱۳۲۳هـ.ش. کال.
۷_ پښتو، پښتانه او پښتونولي، څېړنوال سيد محی الدين هاشمي، وحدت خپرندويه ټولنه، ننګرهار، ۱۳۸۹هـ.ش. کال.
۸_ د عبدالرحمٰن بابا ديوان، د محمد عارف غروال په زيار، پښتو ټولنه، ۱۳۵٦هـ.ش. کال.
۹_ خيرالبيان، بايزيد روښان، کابل پوهنتون د ژبو او ادبياتو پوهنځی، ۱۳۵۳هـ.ش. کال.
۱۰_ زرينې ځانګې، حبيب الله رفيع، د افغانستان د علومو اکاډمي، ۱۳٦۰هـ.ش. کال.
۱۱_ پټه خزانه، محمد هوتک، د پوهنې وزارت، کابل، ۱۳۳۹هـ.ش. کال.
۱۲_ د خوشحال خان خټک کليات، د افغانستان د علومو اکاډمي، ۱۳۵۸هـ.ش. کال.
۱۳_ د نثري ادب ډولونه، څېړنوال سيد محی الدين هاشمي، وحدت خپرندويه ټولنه، ۱۳۸۹هـ.ش. کال.
۱٤_ ادبپوهنه، محقق سيد محی الدين هاشمي، د اريک ګرځنده کتابتونونو اداره، پېښور، ۱۳۸۲هـ.ش. کال.
۱۵_ فرهنګ ادبيات جهان، پنځم ټوک، دوکتور حسن حزايل، تهران، ۱۳۸٤هـ.ش. کال.
۱٦_ ادبي فنون، عبدالرؤوف بېنوا، پښتو ټولنه، ۱۳۲٦هـ.ش. کال.
۱۷_ پښتو _ پښتو تشريحي قاموس، د افغانستان د علومو اکاډمي، دويم چاپ، ميديوتيک اداره، ۱۳۸۳هـ.ش. کال.
۱۸_ فرهنګ نشر سخن، حسن انوري، (په اتو ټوکونو کې).
۱۹_ فرهنګ عميد، حسن عميد، (په دوو ټوکونو کې).
۲۰_ د پښتو ژبې لنډ ګرامر، محقق سيد محی الدين هاشمي، د اريک ګرځنده کتابتونونو اداره، پېښور، ۱۳۸۳هـ.ش. کال.
۲۱_ غوره نثرونه، ګل پاچا الفت، پښتو ټولنه، ۱۳۳٦هـ.ش. کال.
۲۲_ ادبي ليکونه، پوهاند صديق الله رښتين، پېښور، ۱۳۷۳هـ.ش. کال.
۲۳_ پښتو نثر تاريخ، محمد افضل رضا، يونيورسټي بک ايجنسي پېښور، ۱۹۹۵م. کال.
۲٤_ د عبدالقادر خان خټک ديوان، د همېش خليل سريزه او تعليقات، پښتو اکېډمي پېښور، ۲۰۰۲م. کال.